تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ حفظہ اللہ

محرر ومرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

حصہ اولہ

ناشر

مدرسہ حذیفۃ الاحناف

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# از تشریحات النابغہ

## (۱)۔سریزه

## (۲)۔د شیخ صاحبؒ ژوند ته لنډه کتنه۔

## (۳)۔مسئله د اصول مناظري۔



# سریزه

الحمد لله على تمام فضله واكرامه وعلى سابغ احسانه وانعامه وهو الذي بنعمته تتم الصالحات وببركة عونه تتكامل الأعمال والحسنات وهو ذو الجلال والإكرام .

والصلاة والسلام على سيدنا محمد وعلى آله الكرام وأصحابه العظام الذين آمنوا به واتبعوه وأيدوه ونصروه ونقلوا لنا رسالته وبلغونا أمانته وحملوا على عاتقهم نشر هذا الدين في جنبات الأرض فبذلوا في سبيل ذلك المال والأرواح وغادروا الأوطان وفارقوا الوالد والولدان فكانوا بحق ﴿ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ ﴾ ( آل عمران آيت : ۱۱۰ )

ثم حمل هذه الأمانة من بعد رجال لا تلهيهم تجارة ولا بيع عن ذكر الله حفظ الله بهم الدين وأنار بهم السبيل ساروا في شرق الأرض وغربها يؤدون تلك الأمانة التي جعلها الله في أعناقهم أمانة عرضها الله على السموات والأرض فأبين أن يحملنها وأشفقن منها فحملها هؤلاء العمالقة من العلماء الأفذاذ ومن هؤلاء العلماء الأفذاذ شيخي وأستاذي وسندي شيخ الإسلام سلطان المناظرين نابغة العصر شهيد ابن شهيد تقي ابن تقي العلامة أبو العزيز غلام حضرت غلام رَحِمَهُ ٱللَّهُ فكان عقله وقلبه بيضاء نقية حَفِظَ لهذه الأمة دينها وشريعتها وعقيدتها منهجاً و دستوراً أبدياً أنه صاحب العقل المشرق والفكر المستنير وأخرج كثيرًا من العلماء والعوام من الظلمات إلى النور ومن ظلمة الجهل إلى نور العلم نور الله مرقده كما نور قلوبنا بعقيدة أهل السنة والجماعة . أما بعد !

محترمو لوستونكو ! كوم كتاب چې ستاسو په لاسونو كې دي د محترم شيخ صاحب د شهادت نه وروسته ما مناسبه وګڼله چې د شيخ صاحب د مناظرې كورس په ليكلي بڼه ستاسو درانه حضور ته وړاندې كړم .

لكه څرنګې چې د ديني عالمانو دا فرض وي چې د اسلامي احكامو په راټولو سره په ټولنه كې د رسائلو كتابونو وغيره صورت كې د مسلمانانو ديني ضرورتونه پوره كړي اسلام د

مسلمانانو ديني ضرورتونه پوره کړې دی او اسلام هر وخت د مسلمانانو ديني ضروریاتو ته مثبت ځواب وئيلي دئ .

او دا خبره هم له هیچا پټه نه ده چې په هر وخت کې اسلام دښمنه قوتونو او عناصرو په مختلفو طريقو سره د مسلمانانو بې لاري کولو او په مسلمانانو کې د کرکې او نفرت او وحشت خورولو لپاره قسما قسم حربي استعمالوي نو ددې لپاره یې نوي نوي ډلې د مختلفو عقیدو او نظرونو سره پیدا کړي او ددوي تعاون یې جاري وساتلو هر قسم امکانات ، اسباب او وسائل یې ددوي په خدمت کې په کار واچول تر څو خپلو شومو اهدافو او موخو ته ځان ورسوي .

خو الحمد لله مسلمانان خصوصاً علماء کرامو په هر وخت کې د اسلام دښمنه قوتونو او عناصرو د حربو او دسیسو د ناکاره کولو او شنډولو د پاره هر قسم قرباني ورکړې او د خپلو عقائدو مقدساتو او آکابرو دفاع یې حتی الوسع کړې او په هر محاذ یې د تیري کوونکو مخه نیولې او په هر بخش کې د خپل مقدس دین خدمت جاري ساتلې دي.

من جمله له دغو خادمانو څخه یو شيخ صاحب مرحوم وه شيخ صاحب په خپل وخت کې د خپلې عقیدې او مسلک دفاع په ربښتیا سره وکړه او په هر ډګر کې د باطل پرستو او اهلِ زیغو مقابلې وکړي .

د شيخ صاحب د مقابلو او سربندنو په برکت سره زیات مسلمانان د غلطو عقائدو نه یوائې وژغورل شول بلکې د اهلِ زیغو او باطل پرستو مقابلو ته چمتو شول .

شيخ صاحب د خپل ژوند په اوږدو کې د تدریس په موده کې د اسلامي تعلیمي کال په روستني میاشتو کې د علم مناظره کورس کولو او زیاتو طالبانو به د شيخ صاحب مرحوم له دغه کورس مناظره نه استفاده کوله د شيخ صاحب د خدمتونو دا سلسله جاري وه خو چونکې د شيخ صاحب سره ژوند وفاء ونه کړه او د دار فناء نه دار بقاء ته لاړه **الموة جسر يو صل الحبيب الى الحبيب** ، روح دې ښاد وي .

نو ددې د پاره چې د شيخ صاحب د خدمتونو دا سلسله جاري وي او ضائع نه شي نو ما مناسبه وګڼله چې د شيخ صاحب د خدمتونو دغه سلسلې ته یو بل رنګ جریان ورکړم هغه دا چې شيخ صاحب د علم مناظره ټول کورسونه په صوتي شِکل وه یعنې صوتیات وه او ما د خپل والد ګرامي د امر په اساس او زما د والد ګرامي د خاص شفقت په اساس چې د شيخ صاحب د خدمتو په رابطه یې لرلو تر څو چې فائده عامه او دائمي شي نو ما دغه خدمت ته ملا وتړله او د خپل

والد گرامي د دعاګانو مالي امکاناتو او وسائلو په برکت سره الله پاک زه د دغه خدمت کولو جوګه کړم او تقریباً په ۹ میاشتو کې د ۲۰۱۲ میلادي کال کورس مناظره ته چې تقریري وه ما تحریري شکل ورکړو او د یو کتاب بڼه مې ورکړه.

البته که څه هم په دغه بخش کې یوه رساله موجوده وه خو په هغې کې صرف عبارات او حوالې ذکر شوې وي د شیخ صاحب د خولې مبارکې هغه تفصیل چې هغه خپله کړې نه وه په کې ذکر شوي نو په دې اراده چې هغه تفصیل د شیخ صاحب د خولې مبارکې د همیشه د پاره باقي پاتې شي نو په دغه خدمت ما لاس پورې کړه سره له دې چې د خپل والد ګرامي له هر قسم تعاون نه برخمن وم له ما سره د دغه کتاب په لیکلو کې زما کشر ورور طالب العلم سید احمد شاه باچا صاحب او مولوي راز محمد هاشمي صاحب هم همکاري کړې الله پاک دې زمونږ دغه خدمت په خپل دربار کې قبول او منظور کړي.

چونکې دا کورس مناظره د حضرت شیخ صاحب صوتیات وو نو هُو بهو مو د شیخ صاحب د خولې خبرې را نقل کړې بغیر د څه تغیر او بدلون څخه.

آمین یا رب العالمین

أخوکم في الله: سید مکمد ثواب

بسم الله الرحمن الرحيم

# د شیخ صاحب ژوند ته لنډه کتنه :

## نوم :

شيخ الاسلام سلطان المناظرين زينة الشهداء د طريقت او تصوف وتلي چهره د وخت ستر نابغه شهيد ابن شهيد العلامة ابو العزيز غلام حضرت غلام الحنفي د پير طريقت شيخ المشائخ فخر الشهداء حضرت العلامة و مولانا خواجه محمد حضرت رَحِمَهُ اللَّهُ ځوي په کال ۱۳۵۵ لمريز د ننگرهار ولايت آکام ولسوالي قريه پچير په يوه ديندار ه علمي او روحاني كورني كې دنيا ته سترګې وغړولې .

كله چې روسانو د افغانستان په پاكه خاوره تجاوز وكړو د محترم شيخ صاحب كورني د روسانو د تجاوز نه دوه (۲) كاله مخكې پاكستان ته هجرت كړې وه او د مردان په ښار كې ميشت شوې وه .

## ديني زده كړې :

محترم شيخ صاحب لومړني زده كړې د خپل محترم والد صاحب نه كړې وې .

باقي فنون يې د مختلفو علماء كرامو نه په مختلفو ځايونو كې لكه په آضاخيلو ، باړه ، كهجوري ، باجوړ ، باغبانان ، چراټ ، مهاجر بازار ، چارسده ، مردان او داسې نورو ځايونو كې كړې وي .

نوموړي لويه دوره د حديثو د مشهور شيخ الحديث حضرت مولانا محمد ادريس صاحب سره په كال ۱۳۷٦ لمريز چې د ۱۹۹۷ ميلايد كال سره سمون خوري په چارسده ترنګزو كې كړې وه .

## د شهيد شيخ صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ مشهور استاذان :

(۱) شيخ الحديث حضرت مولانا محمد ادريس ترنګزي صاحب

(۲) شيخ الحديث حضرت مولانا روح الامين نثار آبادي صاحب

(۳) شيخ الحديث حضرت مولانا ضياء الله باجوړي صاحب

(۴) شيخ الحديث حضرت مولانا قاضي محمد آمين صاحب نور الله مرقده

(۵) شيخ الحديث حضرت مولانا شهاب الدين دلاور صاحب

(٦) شيخ الحديث حضرت مولانا مصباح الله هزاروي صاحب
(٧) شيخ الحديث حضرت مولانا محمد سليم حقاني صاحب
(٨) شيخ الحديث حضرت مولانا غلام فاروق عُرف وزيرستان مولوي صاحب
(٩) شيخ الحديث حضرت مولانا امين الله باجوړي صاحب
(١٠) شيخ الحديث حضرت مولانا عنايت الله البرهاني صاحب

## علمي خدمتونه :

په ۱۹۹۳ میلادي کال کې په جامع مسجد صديق اكبر رضى الله عنه ګنج اخون آباد کې امام شو او له فراغت نه وروسته يې په همدغه مسجد کې يوه ديني اداره په نوم د دار الاحناف جاري کړه او دوي به په يوائې ځان په دې ديني اداره کې د دين خدمت کولو .

تر دې چې تر ۱۹ کالو يې د دين د خدمت دا سلسله جاري وساتله او په دې لړه موده کې د دين ډير خدمت وکړو .

شيخ صاحب د بې ساري نبوغ په برکت سره د مروجه فنونو تر څنګ ترجمة القرآن ۱۰ کاله او کورس مناظره ۷ کاله ۲ ځل وړه دوره او ۷ ځل غټه دوره تدريس کړه .

او دوي ته به د افغانستان او پاکستان مختلفو علاقو نه طالبان راتلل او ديني تنده به يې ماتوله او په درس تدريس به يې څه معاوضه هم نه آخيستله او د مدرسې او د طالبانو اکثر ضروريات به يې له خپل ځان نه ادا کول .

شهيد شيخ صاحب په دې موده کې يې بې شميره شاګردان نه يوائې د عقيدې او مذهب د پاره وروزل بلکې د فضيلت پګړي يې هم ور وتړلي چې دده دا علمي خدمات د ستاينې وړ او هيچا نه هم پټ نه دي .

## علمي آثار :

شهيد شيخ صاحب په خپل وخت کې د خپلو همزولو په مينځ کې د ډير عجيب استعداد او د بې مثاله قابليت خاوند وه .

دده مبارک علم استعداد او قابليت ته به چې چا وکتل نو هر چا به ترې نه د تصنيف او کتاب ليکلو مطالبه او غوښتنه کوله سره له دې نه چې ډير مصروف هم وه خو بيا هم د عالي همت او د خپل قوي استعداد نه په استفاده او د خپل استعداد په رابطه د خپل مسئوليت د درک کولو

په اساس یې یو څو قیمتي او علمي آثار تیار کړي وه چې تر څو اهل علم خصوصاً او عام مسلمانان ترې نه عموماً ښه استفاده وکړي.

یوه خبره چې قابل ذکر یې ګڼم هغه دا چې شیخ صاحب د دین د خدمت په سلسله کې له ډیر احتیاط او دقت نه کار اخیستلو شیخ صاحب څه رسائل او کتابونه لیکلي هم وه.

خو دده دا رایه وه چې کله زما عمر له څلویښتو (۴۰) کالو نه زیات شي نو زه به په خپلو تصنیفاتو بیا کتنه وکړم د زیادت او نقصان تصحیح به یې وکړم بیا به یې چاپ ته ورکړم خو هغه د چا خبره چې د الله جل جلاله او بنده اراده یوه نه وي نو شیخ صاحب هم د دغې خبرې یو مصداق شو.

## شهادت:

شهید شیخ نابغه صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ په ۱۳۹۵ لمریز کال د زمري د میاشتې په ۲۹ نیټه چې د ۲۰۱۶ میلادي کال د اګست د میاشتې د ۱۹ نیټې سره سمون خوري د جمعې د لمانځه د ادا کولو وروسته د خپل والد ګرامي سره یو ځای د پیښور ښار ګنج اخون آباد کې د خپلې مدرسې تر څنګ د دین او مذهب دشمنانو له خوا په شهادت ورسیدل انا لله وانا الیه راجعون روحونه دې ښاد وي.

شهید شیخ صاحب او ورسره والد صاحب محترم یې د افغانستان پلازمینې کابل په بت خاک قلعه محسن مومین آباد کې خاورو ته وسپارل شول.

که ژوند وفاء وکړه نو د شیخ صاحب محترم په زندګۍ به ان شاء الله تفصیلاً یو بل کتاب هم ستاسو حضور ته پیش کوم چې دا به یو څه وخت نیسي که الله تعالی ته منظوره وه نو دا نو تنده به مو هم خړوب کړم ان شاء الله.

سید محمد ثواب صاحب

## د مُحرر او مُرتب غوښتنه د لوستونکو نه :

محترمو لوستونکو زما احترامانه غوښتنه له تاسو څخه داده چې حتما به دغه کتاب کې غلطي زيادت او نقصان په هر لحاظ سره موجود وي ځکه زه کوم ليکوال او اديب نه يم او د **خلق الانسان ضعيفاً** نه يم نو له تاسو څخه هيله لرم چې نسبت د غلطي زيادت او نقصان محترم شيخ صاحب مرحوم ته ونه کړي او له ما سره د دغه غلطي په اصلاح کولو کې همکاري وکړي د **تعاونوا على البر والتقوى** په اساس ځکه ستاسو همکاري به سبب او ذريعه د تکميل د دغه کتاب شي .

ما په ليکلو د دغه کتاب کې له ښه دقت نه کار اخيستي څه چې شيخ صاحب رَحِمَهُ اللهُ ويلې ما دلته ليکلي خو ليکل د اوريدونکي او ليکل خپله د ويونکي سره په تقديم او تاخير کې فرق لري نو که چيرته رانه په ليکلو کې غلطي شوې وي نو راسره يې شريکه کړي چې د اصلاح لپاره يې اقدام وکړم او په راتلونکي کې بيا په دغه کتاب کې رانه نورې غلطې تکرار نه شي .

يوه بله د پام وړ خبره د محترمو لوستونکو لپاره : هغه دا چې شيخ صاحب چې کومې حوالې د کتابونو ذکر کړي هغه اکثرې حوالې د بيروتي چاپ کتابونو دي ، نو بايد چې اصلِ کتاب ته د مراجعې په وخت کې بيروتي چاپ کتاب ته مراجعه وشي .

د کيفيت او ترتيب په لحاظ سره ستاسو نيکو مشورو ته سترګې په لاريم .

و من الله التوفيق

أخوكم في الله

سيد محمد ثواب

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده و الصلاة و السلام على من لا نبي بعده ولا رسول بعده و هو خاتم النبيين

أما بعد! فأعوذ بالله من الشيطان الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم : ﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴾ ( سورة التوبة آيت : ٧٣) .

وقال الله تبارك وتعالى ﴿ وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً ﴾ . (سورة التوبة آيت : ١٢٣) .

و قال الله تبارك و تعالى : ﴿ فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ ﴾ . (سورة البقرة آيت : ١٣٧).

وعن أبي قلابة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال: لا تجالسوا أهل الأهواء ولا تجادلوهم فإني لا أمن أن يغمسوكم في ضلالتهم أو يلبسوا عليكم ما تعرفون ، و قال أيوب رَحِمَهُ اللَّهُ و قال لي أبو قلابة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ : يا أيوب ! احفظ مني أربعة لا تقل في القرآن برأيك وإياك والقدر وإذا ذكر أصحاب محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فامسك ولا تمكّن أصحاب الأهواء من سمعك فينبذ فيه ما شاء أو كما قال .

و قال عبدالله بن مبارك رَحِمَهُ اللَّهُ :

فلعنة ربنا أعداد رمل ❁ على من رد قول أبي حنيفة رَحِمَهُ اللَّهُ

فلا بالمشرقين له نظير ❁ ولا بالمغربين ولا بكوفة

معززو طالبانو او راغلو قدرمنو عالمانو د علم سره وابسته او تعلق لرونكو ځوانانو !
دا نن اغاز او شروع د درس كورس مناظره مشتمله ګرځوم په اربعة مباحثو باندې :

**المبحث الاول : في بيان تعريف علم المناظرة وموضوعها وغرضها مع بيان معناها اللغوي ووجه تسميتها بالمناظرة :**

**المبحث الثاني : في بيان قسمي الدليل ودفعهما مع الذكر بعض اصطلاحات فن المناظرة :**

**المبحث الثالث : في بيان شرائط المناظرة :**

**المبحث الرابع : في اثبات علم المناظرة وكونها من أهم العلوم :**

## المبحث الاول في بيان تعريف علم المناظرة وموضوعها وغرضها مع بيان معناها اللغوي ووجه تسميتها بالمناظرة :

دا زمونږ د نننۍ درس چې اولين درس دی مشتمل دی په اغاز د كورس مناظره باندې مونږ مشتمل وګرځوه په اربعة مباحث باندې :

مناظره لغتاً يا مأخوذ ده د نظير نه او يا مأخوذ ده له نظر نه أخذ د مناظرې د نظير نه دا اخذ حقيقي نه دي ، بلكې في كون مبدأهما واحداً ، مناظره مأخوذه د نظير نه په دې معنى باندې چې نظير د پاره أصل ماده هم نظر دي د مناظرې د پاره اصل ماده هم نظر دي .

نو لغتاً يا مأخوذه ده د نظير نه او يا مأخوذه ده د نظر نه كه مأخوذه د نظر نه شي بيا دغه نظر لره مختلف معاني دي يا نظر په معنى د التفات النفس إلى المعقولات سره او يا نظر په معنى د انتظار سره .

او يا نظر په معنى د تأمل في المعقولات سره او يا نظر په معنى د مقابلې سره ، داد اصلي مادې هغه اخذ شو .

ربط د دغې مناظرې مصطلح د هغې معنى لغوي سره شته دي كه ماخوذه د نظير نه شي نظير په معنى د هم مثل باندې نو شرط بيا په مناظره كې داده چې :

**أن يكون أحد المتخاصمين يا أحد المناظرين نظيراً مع الآخر بالعلم .**

چې وي به دواړه متخاصمين برابر په علم كې نو شرط دا شو چې دواړه به په علم كې برابر وي داسې به نه وي چې دا يو صاحب علامة الدهر شيخ الحديث دي او دويم د اولې درجې طالب ده او يا عام جاهل سړي ده ځكه د عالم مناظره له جاهل سره فضول د يو عالم مناظره د يو كم فهم طالب سره فضول ده .

امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ به فرمائل :

**كلما ناظرت عالماً أبهته وكلما ناظرني جاهل أبهتني .**

ما چې كله هم د عالم سره مناظره كړې ده ما عالم پړ كړې ده او كه ما د جاهل سره مناظره كړې ده نو زه يې پړ كړې يم نو د جاهل سره مناظره نه كيږي .

او که ماخوذ د نظر نه شي نو که دا په معنی د انتظار سره شي نو ربط د معنی لغوي مصطلح سره شته دي په دې کې چې احد المتخاصمين لره لائق او جديره داده چې :

أن ينتظر أحد المتخاصمين إلى أن يتم كلام الآخر .

يو د متخاصمينو به انتظار کوي تتميم د کلام آخر لره .

نو مناظره کې هم يو بل ته انتظار وي يو غريږي بل غلي او چې دا بل غريږي هغه اولني غلې وي او که دا ورکې نه وي هغه بيا منازعي او مجادلي دي مقابلي دي د هغې تعريف را روان دي .

او که ماخوذ د نظر نه په معنی د تأمل سره شي ربط د لغوي معنی د مصطلح سره داده چې په دې کې اشاره ده :

إلى أولوية التأمل بأن لا يقول أحد المتخاصمين مالم يتأمل فيها .

نو په دې کې اشارت اولويت د تأمل لره ده او يو د متخاصمينو بغير د پوره سوچ او فکر نه قول نه کوي او که يې وکړ نو ګيريږي .

خلاصه دا چې معنی لغوي د مناظرې که ماخوذه د نظير نه شوه ياد نظر نه :

بمعنى التفات النفس إلى المعقولات أو تأمل في المعقولات او الإنتظار أو المقابلة .

معنی لغوي که مقابله شي خو هم ربط آسانه ده : أحد المتخاصمين د آخر سره مقابله کې وي دانه شي کيدې چې دواړه دې په حکم ايجابي قائل وي او يا په حکم سلبي قائل وي بيا دغه وخت کې مناظره نه شي کيدې .

په اصطلاح کې مناظره کوم چې صاحب د رشيدې ذکر کوي :

توجه المتخاصمين في النسبة بين الشيئين اظهاراً للصواب .

د دوه جګړه مارو توجه يې ذهني ده په يو نسبت کې په مينځ د شيئينو کې چې يو قائل ايجاب ته نسبت کوي بل به يې سلب کوي که بل قائل د سلب وي بل به ايجاب کوي په قصد د اظهار حق باندې .

صاحب د رشيدې چې کوم تعريف ذکر کړې دي دا اربعه عللو سره جامع دي په دې کې علت غايي هم بيان شوې علت مادي هم بيان شوې فاعلي او صوري هم بيان شوې په دې کې

توجه د ذهن د متخاصمينو علت صوري شو او دا خپله متخاصمين علت فاعلي شو او نسبت بين الشيئين علت مادي شو او اظهاراً للصواب يې علت غايي شو مقصد به دغه وي .

چا ددې نه اختصار کړي په لنډو الفاظو کې اصطلاحي معنى د مناظرې بيان کړي ده :

**هي النظر بالبصيرة من الجانبين في النسبة .**

دا هغه نظري منطقي آخلي نظر بالبصيرة دي ددوه جانبينو متخاصمينو نه په نسبت د شيء کې چې ايجابي دي سلبي دي .

دا دويم تعريف صاحب د تعريفات للجرجاني ذکر کړي دي ، جلد ۱ ص ۶۷۸ باندې اول کوم تعريف چې مونږ ذکر که صاحب د رشيدې ذکر کړي ص ۹ باندې .

دارنګې تعريفات د جرجاني جلد اول ص ۲۹۸ هم نقل کړي ، ابو الخير په مفتاح السعادة کې د تعريف د علم مناظرې الفاظ دا ذکر کوي :

**هو علم يبحث فيه عن كيفية إرادة الكلام بين المناظرين .**

## موضوع د علم مناظرې :

**الأدلة من حيث انها تثبت المدعىٰ على الغير .**

د علم مناظرې د علم اصولو سره معمولي فرق وشو په علم اصولو کې موضوع ادله اربعه دي **كونها مثبت المدعى او غير مثبت المدعى** هغې نه ساکت دي خپله دا ادله موضوع د علم اصولو ده او علم مناظره چې کوم ده ادله اربعه **من حيث أنها تثبت المدعى على الغير** دغه څلور دلائل ددې حيثيت نه چې مثبت د مدعى په خصم واخلي دا بيا موضوع د علم مناظرې ده .

همدا وجه ده چې علم مناظره د علم اصولو يو شق ده يعنې علم اصولو کې تاته دلائل زده کيږي او په علم مناظره کې طريقه د استعمال د دلائلو زده کيږي چې دغه دلائل به څنګه مستعملوي کله چې ددې چاسره بحث راشي دعوه به څنګه ثابتوي او خصم به څنګه ساکتوي.

نو طريقه د استعمال د دلائلو اربعو علم مناظره ده او خپله دلائل اربعه پيژندل او د هغې انواع پيژندل چې دي دا علم اصول دي نو داد هغې نه شق ده همدا وجه ده که تاسو

مولوي يا حسامي باب القياس کې وګوري نو څه حصه چې راشي الأسولة المتوجه على القياس باب راشي نو هغلته به ناکتين او يا شارحين دا ليکي چې ههنا شروع في بحث المناظرة ، ددې ځای نه شروع په باب د مناظره کې وشوه .

نو داد علم اصولو يو شق ده که څوک يې غير جائز ګڼي هغه دې بيا علم اصول هم او باسي د فنونو مدونه وو نه او بلکې د علم اصولو نه علم مناظره دا ډيره ضروري شوه ځکه هغلته معرفت د ادله محضه وو دي او دلته طريقه د استعمال د ادله وو ده ، اوس چې د ادله وو استعمال باندې نه پوهيږي نو په نفس ادله وو به څه وکړي .

## غرض د علم مناظرې :

او غرض د علم مناظرې :

**تحصيل ملكة طرق المناظرة لئلا يقع الخبط في البحث فيتضح المطلوب الصواب .**

حصول د يو ملکې د لارو د مناظرې دي دې لپاره چې په بحث کې څه خبط واقع نه شي او حق واضح شي .

کله چې سړي دغه غرض نه وي حاصل کړي او دا ملکه دې مناظر ته نه وي کله دې هم ميدان د مناظرې ته نه وراندې کيږي ځکه دې به اهلسنت وي او مقابل به يې اهل زيغ وي دې به په حق باندې وي مقابل به يې په باطله خو د عدم مهارت نه چې دې به د دغې ملکې خاوند نه وي کيدې شي دغه مناظره کې به ده خبط راشي په بحث کې او هغه حق مسئله دې ښکاره نه کړې شي عوامو ته .

ډير کرته داسې شوې دي يو چا کې قوه د مناظرې نه وی بيا په حقه مسئله کې پاتې راشي نو چې په بحث د مناظرې کې رعب راځي درباندې ترتيب د ادله وو درنه خرابيږي مه وراندې کيږه د مناظرې ميدان ته ځکه تا کې دا قوه نشته .

**دا علم مناظره وه** : دوه الفاظ نور دي چې هغه يو لفظ د مجادلې دي بل لفظ د مکابرې دي .

دا دواړه الفاظ د مناظرې سره په مصطلحه معنی کې قربت لري ولې فرق يې شته په بعضې قيد کې :

**المجادلة هي المنازعة لا لإظهار الصواب بل لإلزام الخصم .**

جګړه ده په مینځ د متخاصمینو کې غرض په کې اظهار حق نه وي بلکې غرض د دواړو د خپل خصم الزام او تسکیت وي چونکې غرض باطل ده غایه باطله ده نو جائزه نه شوه اظهار حق نشته الزام د خصم وي .

دریم مکابره ده :

**هي المنازعة لا لإظهار الحق ولا لإلزام الخصم .**

دا هغه جګړه ده په مینځ د متخاصمینو کې چې غایه ورکې اظهار حق هم نه وي الزام الخصم هم نه وي .

دا فقط یو جانب بل جانب باندې کبر علوه ثابتول دي یو وایي زه تا نه عالي یم بل وایي نه زه دا ستا نه عالي یم اظهار حق او الزام خصم مقصد نه دي .

دا لفظ د جدال قرآن عظیم الشان کې نهه ویشت (۲۹) ځایه مذکور دي د قرآن عظیم اصطلاح داده چې کوم ځای کې جدال راشي نو دا جدال، جدال مذمومه وي مګر چند مواضع ترې استثناء دي .

دا دغه د اظهار حق لپاره چې کومه منازعه شوې وي چې مناظره ورته وایي هغه نه وي بلکې **لا لإظهار الصواب** چې کوم تعریف مونږ د مجادلې وکړو نو دغه جدال ته جدال مذموم ویلې شي ، نهه ویشت (۲۹) ځایه قرآن کې جدال راغلي خو دا له صفاتو د اهل کتابو او غلطو خلکو نه ګرځولې شوې که د ټولو تفصیل ته ورځم نو زیات وخت به ونیسي .

خو په دې نهه ویشتو (۲۹) ځایونو کې دري (۳) ځایه جدال ممدوحه دي مذمومه نه دي باقي د هغې نه چې څومره الفاظ د جدال په قرآن کې راځي هغه بد وي مذموم وي قبیح وي ځکه اظهار حق په کې نه وي مثلاً سورة بقره کې راځي :

﴿فَمَن فَرَضَ فِيهِنَّ الْحَجَّ فَلاَ رَفَثَ وَلاَ فُسُوقَ وَلاَ جِدَالَ فِي الْحَجِّ﴾ سورة بقرة آیت:۱۹۷.

او په سورة نساء کې راځي :

﴿وَلاَ تُجَادِلْ عَنِ الَّذِينَ يَخْتَانُونَ أَنفُسَهُمْ﴾. (سورة النساء آیت : ۱۰۷).

په سورة نساء کې بیا راځي :

﴿ هَاأَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَمَن يُجَادِلُ اللَّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلاً ﴾ . (سورة النساء آيت : ١٠٩).

او په سورة انعام کې راځي :

﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَآؤُوكَ يُجَادِلُونَكَ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُواْ إِنْ هَٰذَآ إِلاَّ أَسَاطِيرُ الأَوَّلِينَ ﴾ . ( سورة انعام آيت : ٢٥).

او په سورة انعام کې په بل ځای کې راځي :

﴿ وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَآئِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ ﴾ . (سورة انعام آيت : ١٢١).

او په سورة اعراف کې راځي :

﴿ أَتُجَادِلُونَنِي فِي أَسْمَاءٍ سَمَّيْتُمُوهَا أَنتُمْ وَآبَآؤُكُم مَّا نَزَّلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ ﴾ . (سورة اعراف آيت : ٧١).

او په سورة انفال کې راځي :

﴿ يُجَادِلُونَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَمَا تَبَيَّنَ كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ ﴾ (سورة انفال آيت :٦).

او په سورة هود کې راځي :

﴿ قَالُواْ يَا نُوحُ قَدْ جَادَلْتَنَا فَأَكْثَرْتَ جِدَالَنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴾ . (سورة هود آيت : ٣٢).

همدا شان نهه ويشت (٢٩) ځايونه جوړيږي چې په هغې کې جدال راغلې دی مراد ترې نه اکثر جدال مذمومه دي خو دري ځايونه دي چې لفظ د جدال راغلي دي خو دا جدال جدال ممدوح دي مذموم نه دي مراد .

يو د هغې نه په سورة نمل کې راځي :

﴿ ادْعُ إِلِى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ﴾ . (سورة نمل آيت : ١٢٥).

دا خطاب رحمت عالم ته دي دلته مراد د جدال نه هغه مصطلح نه دي مذموم چې : هي المنازعة لا لإظهار الصواب بلکې اظهار د صواب د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مقصد دي دغه جدال مستثنی دی دغه جدال نه مراد مناظره ده جدال مقبوحه مذمومه نه ده مراد .

یا سورة عنکبوت کې راځي :

﴿ وَلَا تُجَادِلُوا أَهْلَ الْكِتَابِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ﴾ . (سورة عنكبوت آيت : ٤٦).

د الا بالتي استثنی نهي نه ایجاب راولي دلته چې کوم جدال له اهل کتابو سره په طریقې احسن ثابت شو دا مناظره ده جدال مقبوح مراد نه ده .

یا سورة مجادله کې راځي :

﴿ قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللَّهِ وَاللَّهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴾ . ( سورة مجادلة آيت : ١).

نو هغلته مراد د جدال د هغه بي بي نه چې کوم خولة بنت ثعلبة الانصاري رحمها الله وه شان نزول به یې تاسو ته معلوم وي .

د خپل خاوند اوس بن صامت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره کومه نزاع چې راغلې وه نو دغه جدال چې په حقه باندې دغه بي بي وه دا جدال مذموم نه وه بلکې تجادلك في زوجها ددې مقصد اظهار حق وه .

دا نهه ویشت (۲۹) ځایه قرآن کریم کې لفظ د جدال راغلي ، ۳ ځایه ممدوح مناظره مراد ده اظهار حق مراد دي باقي اکثر مواضع هغه جدال مصطلح ده چې هغه لا لاظهار الصواب او جائز نه دي .

بیا قرآن عظیم الشان کې کله کله ددغې مناظرې مجادلې منازعې مکابرې نه تعبیرونه په لفظ د حجت سره کیږي نو ۲۷ ځایه قرآن عظیم کې محاجات ذکر دي لکه سورة بقره کې :

﴿ وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَاجُّوكُم بِهِ عِندَ رَبِّكُمْ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ (سورة البقرة آيت : ٧٦).

محاجات ذکر دي .

يا په سورة بقرة کې راځي :

﴿قُلْ أَتُحَآجُّونَنَا فِي اللهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ﴾. (سورة البقرة آيت : ۱۳۹).

نو دا محاجات محاجات عامه وي قرآن عظيم کې کله محاجات دليل بازي وي د هغه مناظرې لاظهار الحق مراد وي او کله کله مجادله محضه مذمومه لا لاظهار الحق مراد وي.

په سورة بقره کې راځي :

﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ﴾. (سورة بقرة آيت آيت : ۱۵۰).

دليل پاتې نه شي .

نو جدال نهه ويشت (۲۹) ځايه راغې دري ځايه ممدوح باقي مذموم محاجات چې دي دا اوه ويشت (۲۷) ځايه مذکور دي اکثر دلته هم محاجات محاجات بالباطل وي .

او کله کله دا مناظره منازعه قرآن عظيم کې په لفظ د سلطان سره هم راځي نو هغه چې لفظ د سلطان سره مذکوره ده ، اوه ديرش (۳۷) ځايه قرآن عظيم کې راغلي ده بعضې وايي دري ديرش (۳۳) ځايه ذکر ده :

﴿ سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَا أَشْرَكُوا بِاللهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا ﴾. (سورة آل عمران آيت : ۱۵۱).

او يا :

﴿ و اتينا منه سلطان مبين ﴾.

نو خلاصه د مبحث اول داده چې تعريف د علم مناظرې او بيان موضوع ، غرض د علم مناظرې سره د بيان معنى لغوي او څه مناسبت د معنى لغوي معنى مصطلحې سره .

## المبحث الثاني في بيان قسمي الدليل ودفعهما مع الذكر بعض اصطلاحات فن المناظرة :

د دليل د پاره اقسام سره د بيان د بعضې اصطلاحاتو د فن مناظرې طرز او طريقه به دا وي دغه متخاصمين چې يو مسئله شرعي کې دوي اختلاف لري يو جانب به ځان مدعى کې بل به سائل شي اهل ددې فن مدعى چاته وايي سائل چاته وايي نو مدعى من نصب نفسه لاثبات الحکم بالدليل او بالتنبيه ، هغه انسان په متخاصمينو کې چې خپل مينځ کې زيد عمر سره نختي دي دغه متخاصمينو کې چې کوم انسان ځان ودروه لاثبات الحکم ، د يو حکم د ثبوت د پاره بالدليل في النظري وبالتنبه في البدهي دغه ته مدعي ويلې شي اوس سائل به چا ته وايي هغه دويم جانب خود بخود سائل جوړ شو هغه څوک شو من نصب نفسه لنفي الحکم ، هغه انسان ده چې دغه مدعي کوم حکم ثابتول غواړي دي يې نفي غواړي .

چا چې ځان ودروه د نفي د حکم لپاره نن صبا د اهل حديث دهوکه ورکوي خلکو ته نه يې رشيديه کتلي نه تعريفات د جرجاني د ځان نه دهوکه ورکوي خلکو ته څومره مسائل چې نن صبا زمونږ او ددوي مينځ کې نزاعې دي مونږ اکثرا مثبتين يو دوي منفيين .

اکثر داسې دي مونږ دعا بعد السنة ثابتوو دوي يې نفي کوي مونږ دعا بعد الجنازة ثابت وه دوي يې نفي کوي مونږ توسل ثابتوو دوي يې نفي کوي ، مونږ تبرک ثابتوو دوي يې نفي کوي ، مونږ کرامت ثابتوو دوي يې نفي کوي دغسې ټول مسائل متنازعة فيها دوي نافيين دي مونږ مثبتين يو دوي لنډ تاته راتاؤ شي .

الدليل على المثبت لا على النافي ، دليل په مثبت وي په نافي نه وي ته دلائل وايه زما د دلائلو کار نشته دي دهوکه درکوي تاته او دې غريب ناخبره دي نا ځان پوه کړي مدعي چا ته وايي من نصب نفسه لاثبات الحکم لا للحکم الاثباتية الموجبي ، دا نشته مدعي چا ته وايي چې هغه ځان نسب که حکم د اثبات لپاره او حکم تا منطقو کې ويلې څو قسمه دي :

سلبي ، ايجابي دي که تا د حکم سلبي د پاره ځان ودروه ته حکم سلبي ثابتوي هم ته مدعي او که ته حکم ايجابي ثابتوي هم ته مدعي نو نافي مدعي جوړي دي شي دي ځای کې مې مقصد ده چې نافي هم مدعي دي ځکه نافي څه کار کوي هغه ثابتوي حکم سلبي .

دعا بعد سنت جائز نه ده نو د عدم جواز حکم يې وکو نو دې مثبت د حکم سلبي شو نو مدعي شو او دليل په مدعی باندې ده نه په سائل باندې که دا څوک وايي چې دليل په مثبت ده نه په نافي دا غلطه خبره ده دا په اصولو کې نشته او نه په فن د مناظرې کې شته اهل د مناظرې دا ذکر کوي چې دليل په مدعي ده نه په سائل مدعي په حکم ايجابي وي که په حکم سلبي دواړه به دلائل وايي .

دا يوه پخواني نزاع ده د داؤد الظاهري او د ابن حزم الظاهري د امام الباجل مالکي سره يوه عظيمه مناظره پخوا تيره شوې هغه وخت کې اربعه ائمه او اصولين ټول په دې متفق وو چې څنګه مثبت دليل پيش کوي نافي به هم دليل پيش کوي داد څلورو مذهبونو د اصولو متفقه فيصله ده چې دليل په نافي هم ده دليل په مثبت هم ده خو فقط په فن د مناظرې کې چې يو مدعي شو نو په سائل بيا دغه وخت کې دليل نشته ، مدعي به اثبات کوي سائل به يا جواب کوي يا به تسليمي کوي .

د دعوي جواب يې که وکړو فَبِهَا او که وي نکړو تسليميږي به بيا چې کله مدعي دعوی ثابت نه کړي شوه اوس به خبره اولټه شي سائل به مدعي شي ولي مدعي به ايجاب کوه ده به سلب کوه هغه مدعي وه اوس به سائل مدعي شي هغه مدعي به سائل شي اوس به دې دلائل شروع کړي هغه به يا جواب کوي يا به تسليميږي .

نو اهل فن د مناظرې دا وايي نو په دغه يو پيچيده ځای باندې مو دهو که نه کړي خدشه در وانه چوي چې دليل په مثبت ده نه په نافي دا په اربعة ائمه د اصولو کې د چا قول هم نه دي اربعة ائمه دا وايي دليل په نافي هم ده دليل په مثبت هم ده دواړه به دلائل وايي دعا بعد السنة جائز نه ده دا به هم دليل وايي چې چا ويلي چې جائز نه ده په قرآن کې به نفي بنايي په آحاديثو کې به نفي بنايي يعنې اربعة ادله وو کې به يې بنايي که ته وايې چې ثابت ده جائز ده ته به هم دليل بنايي نو دلائل په دواړو دي هم په نافي هم په مثبت باندې .

البته په فن د مناظرې کې چې يو مدعي شو بل سائل شو دغه وخت کې په مدعي دليل



Scanned by CamScanner

شته په سائل نشته چې مدعي دعوی ثابته نه کړې شوه او سائل مدعي وګرځیده اوس به هغه دلیل وایي بیا په هغه دلائل دي .

نو تاسو دې تعریف ته ګوري دې کې پیچیدګي ده .

**من نصب نفسه لاثبات الحکم** ، چا چې حکم ثابتولو ته ځان ودروه حکم موجب ته یې ځان ودروه دا نه حکم ته یې ځان ودروه چې حکم ثابتوي کوم حکم یا سلبي ثابتوي یا ایجابي ثابتوي که هریو ثابتوي نو دا مدعي شو او دلیل په ده باندې ده چې تا وویل دعا بعد السنة جائز ده تا ځان ددې د ثبوت لپاره قائم کړو چې زه دا ثابتوم پس ته مدعي شوي مقابل دې سائل شو ته به دلیل وایي هغه به یې نه وایي .

او که هغه وویل چې دعا بعد السنة جائز نه ده هغه مدعي شو ته سائل شوې ډیر کوشش به کوي هره مناظره کې به ځان سائل پریږدي بل به مدعي جوړوي نو وروسته به په شرائطو کې راشي چې خصم به په دلیل کې مخکې کوي .

کوم ځای کې دي چې خصم په دلیل کې مخکې کړو نو پړ به وي که ته یې مخکې کړې په دلیل کې نو ته به پړیې نو طریقه د مناظرې دا چې ځان به اولین مدعي نه جوړوي بلکې ځان سائل جوړ که هغه به مدعي جوړ کړي هغه چې مدعي شو نو دلیل په هغه شو نو ته یې اعتراضونو ته کیناستي نو **مدعي من نصب نفسه لاثبات الحکم بالدلیل او بالتنبه او سائل من نصب نفسه لنفي الحکم** .

که مدعي حکم ایجابي ثابتوه او ته نفي د حکم ایجابي کوي نو نفي د نفي اثبات شو او که هغه حکم سلبي ثابتوه او ته اوس حکم سلبي نفي کوي نو ایجاب شو او که هغه حکم ایجابي ثابتوه او ته حکم ایجابي نفي کوي نو سلب شو نو دغه دواړو ته سائل ویلې شي .

هر چې دلیل ده چې : دلیل دوي چاته وایي :

**مرکب من القضیتین لیتادی به إلی مجهول نظري** .

همغه تعریف چې مناطقه یې کوي هغه چې مرکب د دوه جملونه وي خو دا مؤدي وګرځیږي تا ته په سبب ددې قضیتینو ته ترتیب ورکړي او دا مؤدي شي په دې طریقې سره مجهول نظري لره دغه دلیل په دوه قسمه دي : (۱) دلیل شرعي ، (۲) دلیل عقلي :

دلیل شرعي ته دلیل سمعي ویلې شي تعلق تر مسموعاتو نیسي ، دلیل عقلي په دوه قسمه دي : مطرده ، منعکسه :

دلیل مطرد دوي دې ته وايي : **مايوجد الحكم بوجوده** ، داسې دلیل قائم کړي چې د هغې د وجود سره حکم خود بخود ثابت شي .

او هر چې منعکسه دي : **ما ينتفي الحكم بانتفائه** . د دغه دلیل مطرد منعکسه چې عبارت ده د عقلیه نه که چا پیش کړو درته نو د فعه به یې کولې شي بسبعة طرق په اوه طریقو سره اصولو کې تاسې ویلي الأسولة المتوجه على القياس المطرد سبعة ، اعتراضات چې متوجه دي په قیاس مطرد باندې اوه دي .

اول د هغې نه ممانعه ده ، دوهم د هغې نه القول بموجب العلة ، دریم قلب ، څلورم عکس ، پنځم فساد الوضع ، شپږم نقض ، اوم معارضه .

دلیل عقلیه مطرّد یا منعکسه دفع کولې شي په سبع طرق باندې یا په ممانعه باندې .

ممانعه په دوه قسمه ده : (۱) منع العلة ، (۲) منع الحکم ، مقیس او مقیس علیه علت مشترک حکم دا ارکان دي لپاره د قیاس اصولي ، صغری کبری حد اوسط او نتیجه .

په اقتراني کې ارکان شول لپاره د قیاس منطقي نو اوله دفعه د دلیل عقلي منعکس مطرد په ممانعت سره یا ممانعه د حکم یا ممانعه د علت ممانعه د حکم څه معنی علت مشترکه و حکم مقیس او مقیس علیه علتي مشترکه او حکم دا علت مشترکه په کې نفي کړه هغې لپاره لار وګوره چې علت مشترک یې باطل شي نو حکم خپله ختم شو قیاس د مقیس علیه په مقیس باطل شو .

دوهم منع الحکم علت تسلیم کړه خو حکم مه منه د دواړو لپاره اصولین یو مسئله زمونږ او د شوافعو مینځ کې اختلاف مثال کې پیش کوي .

لیلة الفطر کې یو سړي مړ شو ده باندې صدقه فطر لازمه شوه او که نه د آخري روژې مابنام لمر پرې پریوت مړ شو دده سرسایه شته او کنه شوافع وايي سرسایه یې لازمه ده احناف وايي سرسایه نشته دي شوافع فیصله او حکم جوړوي **صدقة الفطر توجب على موته ليلة الفطر** شپه دواړه اختر کې په مرګ سره واجبه شوه سرسایه ځکه **لان العلة وجوبها الفطر** ،

علت د وجوب د صدقه فطر فطر د آخري ورځې ده چې روژه ماته شوه غروب پرې راغې بس صدقه لازمه شوه علت موجود شو .

ته ممانعه وکړه ددوي دغه دليل نه په منعه د وصف او علت سره نه منمه دا چې علت د وجوب د صدقه فطر لپاره فطر دي بلکه علت د وجوب د صدقې فطر د اتمهو و نه دي وجود د هغه ذات دي چې د هغه مشقت په ځان باندې برداشت کوي په دې خو اتفاق دي چې وخت د اداء د صدقې فطر بعد طلوع الفجر دي د اختر په ورځ د سحر نه وروسته ده وخت يې هغه دي او علت د وجوب لپاره هغه رأس او ذات دي چې د هغه مشقات ځان باندې برداشت کوي هغه وخت کې وګوره چې هغه ذات شته او که نو ذات نشته سړي مړ دي نو صدقه څنګه لازمه شوه دليل ورباندې دا حديث مبارک دي :

**أدوا عمن تموّنون** .( المبسوط ج ٤ ص ١٣٤)

ادا کړي صدقه فطر د هر هغه چا نه چې د هغه مشقت په ځان باره وي لکه واړه ماشومان د چا مشقت د نفقې خرچې جامې سکنې په تا باندې وي د هغوي نه يې ادا کړي.

نو دا ممانعه شوه په **منع الوصف** باندې هغوي علت د وجوب د صدقه فطر وګرځوه تا وويل چې نه منم چې علت يې فطر ده بلکې علت يې رأس هغه دي چې مشقت يې په ځان باندې برداشت کوي په وخت د وجوب د اداء کې دغه رأس نشته نو صدقه هم نشته دوهمه ممانعه ممانعه د حکم ده علت تسليم شي حکم و نه منلې شي زمونږ او د شوافعو مينځ کې يو بل اختلاف دي جمهور ائمه وايي په مسح کې تثليث نشته شوافع وايي چې په مسحه کې تثليث دي دې کې شوافع ځان ته دي او دا سه کې لاس خپي وينځل د تثليثاتو نه دي خو د سر مسح يو ځل ده شوافع وايي نامسحه به هم دري ځل کوي هغوي دليل پيش کوي :

**المسح ركن في باب الوضوء فليسن تثليثه كالغسل** .

غسل د اندامونو ثلاثو مقيس عليه شوه مسح د سر دا مقيس شو علت مشترکه په وسط کې کونه فرضاً فرضاً شو حکم په مغسولاتو اندامونو ثلاثو کې تثليث مسنونيت د هغوي شو دا حکم نقل شو مسح لره دلته هم دا حکم د تثليث شو هغوي يو قياس وکړو : ته دغه حکم **فليسن تثليثه كالغسل** په مقيس عليه کې حکم د مسنو نيت د تثليث نفې کړه دا سې

ووایه اصلا تثلیث د مسنوناتو نه، نه منم بلکې اطالت په قدرې مفروض باندې په مفروضاتو کې د مسنوناتو نه وی هریو شی چې فرض وي په هغه فرض کې زیادت په هغه فرض کې اطالت دا د مسنوناتو نه وې لکه قیام نفس قیام فرض ده اطالت په کې مسنون ده رکوع فرض ده اطالت یې مسنون نو اصل کې تکریر د مسنوناتو نه نه دي بلکې زیادت او اطالت د مسنوناتو نه دي په قدرې مفروض کې اوس دغه اطالت او زیادت په مغسولاتو دا ندامونو کې متصور نه وه بغیر د تکریر نه نو مونږ حکم وکوه چې تکریر د مسنوناتو نه اصل کې زیادت د مسنوناتو نه وه حکم زیادت د مسنوناتو نه دي اطالت دي په قدر مفروض باندي خو دا اطالت او زیادت په مغسولاتو کې متصور نه وه بدون د تکریر نه نو مونږ قول وکوه چې تکریر د مسنوناتو نه دي حکم منعه شو چې تکریر ته مسنون مه وایه زیادت اطالت په قدرِ مفروض باندې مسنون وګڼه هر چې مسئله د سر ده هلته اطالت او زیادت پوره کیږې په استیعاب باندې نو ضرورت نشته تثلیث لره نو استیعاب د مسنوناتو نه شو تکریر ته څه ضرورت پاتې شو دا اوله دفعه د قیاس عقلیه منعکسه مطرد ممانعې سره په منعه د علت یا منعه د حکم دویمه دفعه د دلیل عقلې مطرد یا منعکسه قول دي بموجب العلة قول بموجب العلة دوي چاته وایې تسلیم کون الوصف علة وبیان أن معلولها غیر ما ادعاه المعلل علت مشترکه په مینځ مقیس او مقیس علیه کې تسلیم کړي شي تسلیم کون الوصف علة ومنلې شي چې علت همدغه دي وبیان أن معلولها غیر ما ادعاه المعلل خو بیرته واضحه شې دا خبره چې علت دغه دي خو معلول هغه نه دي چې تاسې راویسته دي هغه حکم نه ده چې تا راویستې دې مثال د احنافو او موالکو مینځ کې اختلاف دي په غسل د مرفق کې جمهور أئمه په دې قائل دي دري واړه امامان دا څنګله دا خله ده په مغسول کې امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ دا مرفق داخل نه دي په مغسول کې لازمه نه ده یعنې قدرې مفروض کې، نه ده نو دري واړه امامان وایې چې مرفق داخل په قدرِ مفروض د مغسول کې او امام مالک صاحب وایې نا دا داخل نه ده په قدرې مفروض کې لازم نه ده سنت او مستحب به وې خو فرض نه ده دي وایی هغه دلیل وایې إن المرفق حد فلا یدخل تحت المحدود لان الحد لا یدخل فی المحدود وایدیکم إلی المرافق دا حد شو دا غایه شوه دا مرفق چې ذکر شوې دا حد دي نو دا په محدود

کې نه داخلیږي ځکه حد محدود کې داخل نه وي نو چې مرفق حد و ګرځیده نو محدود چې مغسول ده په هغې کې داخل نه شو په دلیل د لان الحد لایدخل في المحدود سره ته اوس تسلیم ددې علت او دلیل و که منم چې الحد لایدخل في المحدود دا علت مسلم دی خو حکم داسې راوباسه چې هغه غیرو خیژي د هغه چا نه ادعاه المعلل اوس ته و وایه دا لاس که د پنجې خوا نه حد یې ځنګل شي نو د اوږې خوا نه راشه نو ځنګل حد و ګرځوه د متروک نه د مغسول نو هغوي اوس د پنجې خوا نه شروع کوي ځنګل حد ګڼې نو حد چې په محدود کې نه وي داخل نو مرفق په مغسول کې نه دي داخل.

ته ورته د بره خوا نه راشه نو دا مرفق حد د مغسول هم دي حد د متروک هم دي نو او وایا دا ځنګل حد المتروك فلا یدخل فی المتروك لان الحد لا یدخل في المحدود دا مرفق حد د متروک دي او حد په محدود کې داخل نه وي نو مرفق په متروک کې داخل نه ده مغسول کې خپله داخل شوه دیته ممانعه ویلی شي دیته قول بموجب العلة ویلې شي تسلیم کون الوصف علة و بیان أن معلولها غیر ما ادعاه المعلل علت و منلې شي خو هغه حکم بل ثابت شي خلاف د هغې نه چې معلل ثابت کړې وي.

دریم دفع د قیاس عقلي مطرد یا منعکسه هغه قلب ده قلب لره هم اصولین دوه اسمین ذکر کوي قلب الحکم او قلب العلة، د هغې طریقه داسې ده جعل علة الخصم معلولا و معلوله علة، د خصم علت معلول کړه او معلول یې علت کړه یا دوهمه طریقه دا جعل سائل ما جعله المعلل علة لما ادعاه من الحکم علةً لضد ذلك الحکم، سائل چې مدعي شي نو معلل ورته ویلې شي د کوم حکم لپاره علت جوړ کړي همدا علت را واخلي د هغې حکم ضد پرې ثابت کړي نو جعل سائل ما جعله المدعي یا معلل علةً لما ادعاه من الحکم علتاً لضد ذلك الحکم، علت هغه را واخلي حکم پرې غیر ثابت کړي، فیصیر حجةً للسائل دون المعلل والمدعي، مثال د هغې لپاره زمونږ او د شوافعو مینځ کې په یوه جزیه کې اختلاف ده د رمضان روژه چې کله رمضان راشي د شوافعو راي داده د روژه نیونکي لپاره تعین قصد قلبي په رمضان کې روژه

نیونکي لپاره د فرائضو نه ده د نیت تعین به کوي که د نیت تعین یې ونه کړو دغه روژه یې نه صحیح کیږي .

احناف وایي نیت ضروري دي ښه خبره ده خو که عبد تعین کوي او که نه یې کوي شارع تعین کړي ده د قضا روژه د کفارې روژه په کې نه صحیح کیږي نور هیڅ هم نه صحیح کیږي ، ځکه د شارع تعین موجود ده که د ده تعین وي که نه وي شارع تعین کړي دي تعین عقد قلبي د دې له عابد سره تعلق لري او قصد د عابد په مقابله د قصد الله تعالی و ارادته کې چې تعین هغه کړي د اله العالمین تعین مقدم ده په تعین د عبد باندې .

هغوي یو قیاسي مثال پیش کوي : **ان صوم رمضان فرض فشرط فیه التعین کالقضاء** ، قضاء مقیس علیه که رمضان مقیس که علت مشترکه کونهما فرض دا فرض ده حکم هلته په قضاء کې تعین د صائم نه نو حکم د لته هم تعین د صائم نه .

مونږ جواب له دې نه کوو : **لا یشترط التعین فیه بعد ما تعین الیوم کالقضاء** ، د عبد له خوا تعین ته هیڅ ضرورت نشته وروسته له دې نه چې تعین د یوم له شارع نه راغلي لکه قضاء تا چې د قضاء لپاره یوه ورځ متعینه کړه له مخکې نه هغه ورځ چې راشي دوهم تعین ته هیڅ ضرورت نشته نو د عبد نه چې تعین راغې دوهم تعین ته ضرورت نشته نو چې شارع نه تعین راغلې د عبد تعین ته څه ضرورت ده علت و منلې شو خو حکم ضد د هغې باندې ثابت شو .

څلورمه دفعه د قیاس عقلیه مطرد یا منعکسه په عکس سره کیږي عکس **تمسك السائل بأصل المعلل على وجهٍ یکون المعلل محتاجاً إلى وجه المفارقة بین الاصل والفرع** ، دا دوه خصمین چې یو مدعي ده چې معلل هم ورته وایي ځکه علت او تعلیل دې بیانوي دا دوهم تعلیل دي راپاخي سائل باصل المعلل معلل په علت استدلال وکړي دا سې یو عجیب استدلال وکړي چې مدعي مجبوره شي مفارقې ته په مینځ د دې علت او حکم کې چې اصل او فرع دي د ده د علت نه دا سې یوه جزیه راوباسي چې مدعي خپله هم مجبوره شي چې زما د علت او زما د حکم یعنې د اصل او فرع په مینځ کې مفارقه جدائي په کار ده نو دې ته عکس ویلې شي مثال زمونږ او د شوافعو په مینځ کې جزیه اختلافي ده زنانه چې کوم زیورات لري نصاب ته چې ورسیږي ، احناف وایي په دې باندې زکات شته دي .

شوافع وايي زنانوو باندې په زيوراتو کې زکات نشته څومره زيورات چې ولري زکات په کې نشته، په آحاديثو کې د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ د مذهب په تائيد ډير زيات روايات دي، هغوي عقلي قياس داپيش کوي: **الحلي اعدت للابتذال فلا تجب فيه الزكوة كثياب البذلة**، جامې د استعمال مقيس عليه ګاڼه د زيوراتو د استعمال مقيس علت مشترکه **كونها للبذلة** حکم په جامو د استعمال کې عدم زکوة دلته هم حکم عدم زکوة دا قياس شو ته اوس عکس په شکل د دفعه د دې قياس وکړه ورته ووايه تا قياس دې د پاره مقيس عليه **ثياب البذلة** راويستي ستا د قياس په شان به زه هم قياس وکړم: هغه زيورات سپين زر وغيره چې سړو استعمال کې راوستې دي **لا تجب فيه الزكات** ځکه چې دا **اعدت للابتذال** دا استعمال لپاره دي **فلا تجب فيه الزكوة كثياب البذلة**.

نو اوس شوافعو ته وايو چې سړو کله چاندي د ځان د استعمال لپاره جوړه کړه زکوة په کې شته نو دوي وايي هاو شته په کې نو ستا علت خو هلته هم موجود ده کنه هغه هم د ابتذال لپاره دي او دا هم د ابتذال لپاره، دده علت او قياس دي راواخيست اوس دې مجبوره دي چې دې به دا خبره هم کوي چې نارينه د استعمال د پاره سونا ساتي نو هم زکات په کې نشته يا به دا خبره کوي که دا خبره نه کوي نو د خپل اصل او فرعې مينځ کې به د مفارقت قول کوي نو دې ته عکس ويلې شي.

پنځمه دفع د قياس عقلي مطرد منعکسه فساد الوضع ده دې آسانه معنى داده معلل او مدعى دغه علت وضع کړي د اثبات د دغه حکم د پاره ته راپورته شي **سائل جعل السائل العلة وصفاً بحيث لا يليق بهذا الحكم**، سائل دا علت داسې يو وصف جوړ کړي چې دغه حکم دې سره ملائم مناسب نه وي نو فساد د وضعي تا چې تعين او وضع دې علت دې حکم ته کړي ملائمه او مناسبه نه ده.

زمونږ او د شوافعو مينځ کې يوه جزيه اختلافي ده دا خبره اتفاقي ده چې **ارتداد احد الزوجين** سبب د زوال د نکاح جوړيږي.

**سبب د مفارقت** : ښځه او خاوند کې يو مرتد شي نو ارتداد د **احد الزوجين** سبب د زوال د نکاح جوړيږي دا خبره اتفاقي ده نو اوس اسلام د **احد الزوجين** دا سبب لپاره د زوال د نکاح سابقې جوړيږي او که نه دا خبره اختلافي ده : احناف وايي ارتداد د **احد الزوجين** سبب د زوال د نکاح جوړيږي خو اسلام د **احد الزوجين** سبب د زوال د نکاح سابقې نه جوړيږي ښځه او خاوند کې يو ه اسلام قبول کړه بيا هم په زړه نکاح پاتې کيدې شي هغوي دليل وايي : **الإسلام أحد الزوجين اختلاف في الدين فيفسد النكاح كارتداد أحد الزوجين** ، نو ارتداد د احد الزوجين مقيس عليه اسلام د احد الزوجين مقيس علت مشترکه په دواړو کې اختلاف د دين حکم په صورت د ارتداد کې زوال د نکاح حکم په اسلام کې د ارتداد احد الزوجين هم زوال د نکاح دا قياس شو ددوي ته پرې فساد د وضعې وکړه دا کوم علت چې اختلاف د دين ده وضعه يې کړو د زوال د نکاح لپاره او قياس يې کړو اسلام د احد الزوجين په ارتداد باندې نو ګويا کې قياس د اسلام په ارتداد راغې او په ارتداد کې زوال حکم وه نو په اسلام کې يې هم زوال حکم وګرځوه .

اوس راشه چې دا اسلام سبب د اتفاق يو ځاى والې دي او که د تفرقې دي ارتداد خو هسې هم تفرقه ده اسلام سبب د تفرقې کيدې شي او کنه نو جواب ورته دا وکړه چې **الإسلام عاصم غير مزل** ، اسلام خو د حقوقو محافظ دي ملکيت نور هم تاموي زائله کوي يې نه تا خو اسلام مزل ثابت کړو نو **كون العلة وصفاً بحيث لا يليق بهذا الحكم** .

علت نه داسې وصف جوړ کړي چې کوم حکم معلل ثابتوي هغه دې سره ملائم نه وي نو ارتداد خو معلومه خبره ده سبب د تفرقې ده او هر چې اسلام ده دا خو سبب د اتفاق او اتحاد ده نو دا ته څنګه سبب د تفرقې جوړوي .

شپږمه دفع د دليل عقلي مطرد يا منعکسه نقض دي ، نقض چاته وايي : **وجود العلة بدون الحكم** ، هغه چې کوم علت راويستلې هغه علت پيدا کړه او حکم نه وي خپله هغه مجبوريږي فساد ته په کې لکه د حنابلو رايه داده ظواهر هم پرې قائل دي چې نيت په اوداسه کې د فرضو نه دي دليل وايي : **الوضوء طهارة فالنية شرط فيه** ، اودس طهارت دي نيت په کې

شرط دي ، مونږ وايو **منقوض بغسل الثوب** ، ستا دليل منقوض دي په غسل د ثوب سره .
تا دليل کښې ويلي چې هر طهارت کښې نيت شرط دي نو په دې کښې هم شرط دي نو دا خبره چې هر طهارت کښې نيت شرط باطله ده منقوضه ده په غسل د ثوب سره يو سړي جامې ووينځلې خو په نيت د طهارت يې و نه وينځلې نو نيت په کښې نشته طهارت راغې نو دا نقض دي وجود د علت بدون الحکم .

اومه دفع د قياس عقلي مطرد يا منعکسه هغه معارضه ده لکه د شوافعو سره هغه جزيه اختلافي ده چې تثليث په مسحه کښې هغوي د مسنوناتو نه گرځوي جمهوريې نه گرځوي قياس د هغوي دا دې چې : **المسح رکن في الوضوء فليسن تثليثه کالغسل** ، مغسولات مقيس عليه کړه ممسوحات مقيس شو علت مشترکه رکنيت رکنيت شو ، حکم هلته تثليث دلته هم تثليث شو ته ورته معارضه د قياس وکړه ورته ووايه : **المسح رکن فلا يسن تثليثه کالمسح على الخفين والتيمم** دا مسحه رکن ده خو تثليث يې سنت نه ده لکه مسحه په خفينو او تيمم باندې هلته تثليثات سنت نه دي نو دلته هم تثليث سنت نه شو نو ده قياس وکړو د مسح په غسل باندې مونږ قياس وکړه د مسحې په مسحې باندې معارضه هم ده د معارضې په صورت کښې بيا ترجيح قوي دليل ته ورکولې شي نو معلومه خبره ده چې قياس د ممسوح په مغسول باندې او قياس د ممسوح په ممسوح باندې نو دا قياس اولى شو د هغه قياس نه چې دوي په مغسولاتو کړې ده دا معارضه ده .

## دوهم دليل :

دوهم دليل سمعي دي ددې نه اصولين تعبير کوي په دليل مؤثره سره دليل مؤثره دوي چاته وايي **ما لا ينتفي الحکم بانتفائه** د دليل په نفي سره حکم نه نفي کيږي ځکه چې کيدې شي دليل مؤثره سمعيه کښې يو حکم ثابت شي **بعشرة دلائل** سره يو نفي کړه په يو اعتراض وکړه په بل به ثابتيږي نچوړيې داسې ده مطرد لکه ته چې قياساتو باندې دليل پيش کړې او سمعيه د قرآن سنت اجماع نه دليل پيش کوي نو دا مؤثره دي دا سمعيه دي او قياسات چې دي هغه عقليه مطرد منعکسه دي د هغې د فعه بسبعة طرق ده ددې د فع په يو څيز ده چې

معارضه ده هسې نه چې چا دليل کتاب الله نه پيش کړې وي ته پرې ممانعې پيش کوي فساد الوضع پيش کوي **قول بموجب العلة** پيش کوي يا قلب يا عکس يا معارضه نقض يوه هم نه شي کولې په غير د معارضې نه په دليل سمعيه کې دفع صرف په معارضه وي چې آيات چا پيش کړه معارضه کې آيات درنه غواړي او که حديثې پيش کړو نو په معارضه کې به حديث پيش کوي نو بيا ته هلته د نص په لحاظ د متن په لحاظ اخذ بالعمل او تعامل په لحاظ وجوه د ترجيح شته کنه چې په کومه طريقه ترجيح وي هغې ته به ترجيح ورکوي نو دا دويم دليل مؤثره شو چې دې ته دليل سمعي ويلې شي نو دفع يې کيږي په معارضه باندې بل شي باندې يې دفع نه شي کيدې .

دا دليل سمعيه بيا په دري قسمه دي : اول د هغې نه کتاب الله دي ، دويم ددې نه سنت رسول دي ، دريم ددې نه اجماع ده ، زه اجمالي په اصولو تيريږم دا تاسو ته تير شوې هم دي خو چې مستحضر شي درته او دا فن د مناظرې له فن اصولو سره ولږي باقي دا تاسو ته بار بار تير شوي دي ، اول : د أدّلوو سمعيو نه کتاب الله دي د هغې لپاره شل (۲۰) قسمونه دي قسم اول د هغې خاص دي چې دا راجح دي په نورو باندې قسم ثاني د هغې نه عام دي بيا مشترک دي بيا مؤول ، ټول د اصول الشاشي نه واخله تر آخره ټول دا ذکر کوي کتاب الله خاص عام بيا چې کله دلائل راشي په هره مسئله کې مثال دعا بعد السنة کې چې ته دليل پيش کړې **إِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ** چې فارغيږې له عباداتو نه **فاتعب بالدعاء** نو وايي چې دا خو عام دي نو عام هم د قرآن کريم نه قسم دي قرآن کريم استدلال کې پيش کول جائز دي که نه دي جائز نو اصولين څنګه وايي چې خاص دي عام دي هره مسئله کې خو خاص نه وي کنه نو که هر مسئله کې خاص زه له تاسو نه وغواړم نو يقين وکړي چې د مانځه فرائض به هم پيدا نه کړي دا ټول استدلالات د عام نه دي مثلاً د ماسپخين مانځه کې قيام څنګه دي نو ته به وايي چې فرض ده څه دليل ده پرې : **قوموا لله قانتين** نو کوم ده چې ماسپخين په کې ذکر ده نو دا خو عام دي نو د خاص لپاره خو ترې نه استدلال کولې شي نو د عام نه استدلال خو څه ناروا نه دی او په هغه وخت کې **عند انتفاء الخاص يستدل بالعام** دا خو د اصولو قاعده ده خاص چې منتفي شي نو استدلال خو د بخود عام نه کيږي د احنافو اصول خو عام قطعي ګڼي په شان د

خاص نو چې هغه هم قطعي دا هم قطعي معارضه هم کيدې شي البته عام مخصوص البعض چې استثناء ترې وشي هغه بيا ظني ده د خاص مقابله بيا نه شي کولې نو خاص عام مشترک مؤول.

بل ظاهر دي او نص دي مفسر او محکم خفي مشکل مجمل متشابه حقيقت او مجاز صريح او کنايه نو شپاړس شول استدلالات څلور شول استدلال بعبارة النص، باشارة النص، بدلالة النص، باقتضاء النص دا شل قسمونه شول.

دويم دليل د سمعيه مؤثره نه سنت رسول دي د هغې نه تعبير په آحاديثو سره کيږي او علم الحديث په دوه قسمه ده د علم روايت الحديث علم درايت الحديث.

درايت الحديث اصول الحديث ته ويل کيږي اصول حديث د اصولو کوم اقسام چې تاته ښايي مصطلح الحديث او روايت الحديث **هو علم يعرف فيه أقوال النبي ﷺ أو الصحابة أو التابعي وأفعاله وتقريراته وأوصافه.**

هغه علم دي چې هغې کې د نبي اکرم ﷺ اقوال افعال تقريرات او صاف ذکر کيږي د غه شان په هغې کې اقوال الصحابة او تابعين ذکر کيږي خو دا په نزد د علماء اصول حديث باندې، هر چې په نزد د علماء اصوليين باندې علم روايت الحديث عبارت دي: **عما اضيف إلى النبي ﷺ من قول او فعل**، د اصولينو په نزد حديث هغه ده د کوم قول فعل نسبت چې نبي عليه السلام ته وشي د صحابي او تابعي قول فعل ته دوي حديث نه وايي او په نزد د محدثينو باندې صحابو ته منسوب هم حديث دي خو حديث موقوف ورته وايي چې تابعي ته منسوب شي هغه هم حديث دي حديث مقطوع ورته وايي.

نو اصطلاح د محدثينو له اصولينو نه عامه ده نو اصولين **ما أضيف إلى النبي ﷺ من قول او فعل**، او په نزد د محدثينو باندې: **هو علم يعرف فيه أقوال النبي ﷺ و أفعاله و تقريراته و أوصافه وأقوال الصحابي والتابعي**، دې ټولو ته حديث ويلې شي.

موضوع د دغه روايت علم الحديث **ذات النبي ﷺ من حيث انه رسول**، او چا

ويلي : الرواة والمروياة ، د راويانو او مرويانو بحث دا موضوع ددې فن ده .

او هر چې علم درايت الحديث دي چې اصول حديث ورته وايي امام سيوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ راغونډ کړي په دغه شعرونو کې :

علم الحديث ذو قوانين يحد يدرىٰ بها أحوال المتن والسند

فذاك الموضوع والمقصود أن يعرف المقبول والمردود

علم حديث خاوند د قوانينو ده تعريف يې كولې شي په دې سره چې ددې په وجه احوال د متن او سند معلوميږي نو دا درايت الحديث شو همدغه يې موضوع هم ده چې متن او سند .

غرض او غايه يې داده چې مقبول روايت د مردود نه بيل او جدا شي .

نو دويم د دليل سمعيه نه حديث مبارک شول : دا حديث بيا په دوه قسمه ده متواتر او خبر واحد حديث متواتره عبارت دي : عن الخبر الذي يكون الرواة كثيرين بأن يكون جمعهم بالكذب محال .

روات د سند يې ډير زيات وي محال وي چې دوي دې راغونډ شي پر دروغو باندې .

ويكون تعداد كثرتهم باقٍ إلى آخر السند .

تعداد د كثرت آخر د سند پورې باقي وي .

د سند په باب كې به نيتجه تابع د اخس ارذل خامخا ګرځوي مثلاً مشهور هغه چې درې يا فوق د دريو نه سند بيان كې حد د تواتر ته نه وي رسيدلي .

عزيز هغه چې دوه دوه راويان ولري .

خبر واحد هغه چې يو يو راوي ولري .

اوس دې وخت كې د مصنف د كتاب او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مينځ كې خمسة وسائط راغلي يا ستة وسائط راغلي كله ثلاثي يا رباعي راغلې .

نو كه په زمانه د صحابوو كې لس راويانو روايت وكړو بيا د هر يو نه لس لس تابعينو روايت وكړ دې هر يوه نه بيا لسو لسو نورو وكړ دا درې طبقې په تواتر كې وچليدې .

په څلورمه طبقه کې یو سړي روایت وکړ پنځمه طبقه کې بیا لسو روایت وکړ مصنف ته په لسو سندو راغې نتیجه تابع د اخس ارذل دوي ورته خبر واحد وایي دد ې یوې طبقې د لاسه اګر که بره هم لس دي بښکته هم لس دي خو دا مینځ کې خبر واحد راغې نو دا خبر واحد شو دغه شان مشهور یا متواتر سنداً شته خو په یوه رتبه کې عزیز شو دوه دوه راغلل بس دغه حدیث عزیز دي نو متواتر عبارت د هغه خبر نه ده چې رواةیې کثیرین وي او توافق یې په کذب محال وي او تعداد د کثرت یې باقي وي آخر د سند پورې دغه شان ته حدیث متواتر په احادیثو کې ډیر قلیل دي چا ویلي یو ده چا ویلي دوه دي او چا ویلي دري دي نو حدیث متواتر سنداً ډیر قلیل دي

تواتر بیا په څلور قسمه دي : (۱) تواتر الاسناد ،(۲) تواتر الطبقات ، (۳) تعامل ، بعضې څیز داسې وي چې په سند سره تواتر نه لري خو په تعامل سره تواتر لري. مسواک چې په کومو احادیثو ثابت ده هغه اخبار احاد دي هر یو سند یې چې راواخلی خبر واحد دي یا حداقل عزیز به وي خو که تعامل ته راشو کون المسواك من الدين په تواتر یې تعامل ثابت که هر چا ته پته ده چې دا من الدین دي که چا انکار وکوه چې مسواک ددین نه نه دي نو کافر کیږې ځکه تواتر نه انکار راځي تواتر مفید د علم قطعي وي منکر یې کافر ده شاه انور شاه کشمیر رَحِمَهُ‌اللهُ په إكفار الملحدين عن ضروريات الدين کې په عوامو کې دا مشهوره ده چې منکر د فرضو کافر ده او د واجبو او سنت منکر کافر نه دي په دي مسئله کشمیري صاحب تحقیق کړي او بیا یې ویلي چې دا هغه مسنونات دي چې کونها من الدين ثبوت یې په دین کې په تواتر وي که چرته مسنون وي مستحب یا مباح وي خو ثبوت یې په دین کې به تواتر سره وي تواتر یا سندي وي یا په تعامل وي نو بیا یې په انکار کفر لازمیږي بیا یې مثال کې مسواک پیش کړې چې دا په اخبار احاد سندا ثابت ده خو کونها من الدين دا په تواتر تعامل ثابته ده دغه شان عمامه هم ده روایات په دي باره کې چې څومره هم زیات دي اخبار احاد دي یا قوي یا ضعیف خو کونها من الدین دا ثابت په تواتر سره یا په تعامل سره ده که چا وویل چې عمامه من الدين نه ده نو کافر کیږي ورباندې ځکه د تواتر نه انکار راځي یو څیز به مباح وي خو کونها من الدين په تواتر ثابت شي نو منکر یې کافر کیږي لکه اباحت د لحم د بقرې

اکل من مباح دي خو کونها من الدین دا په تواتر ثابته ده هر بچي ته دا پته ده چې هندو يې ناروا ګڼي مسلمانان يې روا ګڼي نو که چا وويل چې دا من الدين نه ده يا جائز نه ده نو کافر کيږي نو دريم په تواتر تواتر تعامل دي.

(۴) څلورم تواتر علی قدر المشترك دي تواتر علی قدر المشترك هغه دا وي چې د سند په لحاظ سره خبر واحد وي خو مجموع من حيث المجموع چې راواخستلې شي حد د تواتر ته رسيږي لکه معجزات د سيدنا نبي المختار صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معجزات هر يو که راواخلي نو سنداً په تواتر نه ده ثابته سنداً خو د ټولو معجزاتو سندونه راغونډ کړه احاديث راواخله نو قدر مشترک دا خبره ثابتوي چې أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کان ذو المعجزة ، چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاوند د معجزې وه که چا وويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ معجزي نه لرلې کافر کيږي پر باندې ځکه دا د تواتر علی قدر المشترك نه انکار راځي که د يو معجزې خاصې نه انکار وکړ ضلال او ګمراهي به راشي خو کافر کيږي نه ځکه په خبر واحد ثابته وي د شجرې د معجزې نه د ګوتو نه کومې اوبه چې رابهر شوې وي دا ټولې معجزې چې راواخلي بغير د هغه انشقاق د قمر نه هغه په نص قطعي ثابت ده چې نور څو مره معجزات دي په نصوصو قطعيو نه وي ثابت که انکار ترې وکړي ضلال دي خو کفر نه دي خو که چا وويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ معجزې نه لرلې کافر کيږي ځکه معجزه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ټول آحاديث چې راغونډ کړي نو علی قدر مشترك دا ثابتوي چې انه کان ذوالمعجزة ، دا تواتر علی قدر مشترك شو ، اول حديث حديث متواتر وه .

دويم د حديث نه خبر واحد د خبر واحد متعدد اقسام دي خو په اعتباراتو مختلفوو باندې اعتبارات به ځکه ورکوي چې دا تقسيم او تعريف کې څه فرق دي ؟تعريف دې د پاره کيږي چې د هغه څيز ماهيت ذهني وپيژندل شي او تقسيم دې لپاره کيږي چې د هغه څيز وجودي خارجي وپيژندل شي نو دا تقسيم په خپله مفيد د تعريف دي په خارج کې يې تاته در ښايي لکه تعريف چې مفيد د تعريف ده نو هر کله چې ته د يو څيز تعريف وکړې او ثانياً يې بل تعريف کوې نو تعريف د معرف تحصيل د حاصل دي نو د غه شان ته تقسيم د هغه څيز چې يو ځل تقسيم شوې ده دا هم تحصيل د حاصل دي چې يو ځل يو څيز تقسيم شي بيا بل تقسيم

نه شي ورکولې ، اول تقسيم دي د تعريف لپاره خارجي کړي دي نو تعريفاتو کې معرفت ذهني وي او په تقسيماتو کې معرفت خارجي وي نو دواړه مفيد د تعريف شول نو تعريف د معرف چې تحصيل د حاصل دي نو تقسيم د هغه څيز چې تقسيم شده وي ثانياً هم تحصيل د حاصل دي نو هر کله چې يو څيز ته ثانياً تقسيم ورکوي نو اعتبار به يې بدلوي جهت به بدلوي نو خبر واحد ته مونږ اوس ډير تقسيمات ورکوو خو په اعتباراتو مختلفوو په جهاتو مختلفوو چې تحصيل د حاصل رانه شي نو خبر واحد **باعتبار الانتهاء على ثلاثة اقسام**.

امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ او نور کتب د حديثو دې جانب ته ابتداء د سند وايي صحابي چې کوم اړخ کې واقع ده انتهاء د سند د حديث مرفوع که بيا حديث موقوف وه تابعي چې کوم ځای کې واقع دي انتهاء د سند هغې ته وايي که حديث مقطوع وه تبع تابعي چې کوم ځای کې واقع دي انتهاء د سند هغه ته کيږي نو ابتداء د سند او انتهاء د سند نو خبر واحد انتهاء د سند په اعتبار سره په دري قسمه دي: (۱) مرفوع ، (۲) موقوف ، (۳) مقطوع .

مرفوع هغه مسند ته ويلې شي چې اتصال تر ذات د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وي او موقوف هغه حديث دي چې انتهاء تر صحابي وشي د صحابي فرموداتو ته حديث موقوف وايي او مقطوع هغه حديث دي چې انتهاء تر تابعي وشي نو د وهابيانو کتب مه مطالعه کوي که وي ګورئ نو ځای پر ځای ليکلي وي **هذا حديث موقوف لا حجة في الموقوفات** هذا موقوف ددې حديث انتها تر صحابي ده **لاحجة في الموقوفات** د صحابو خبره دليل نه ده .

داخبره يې تريو ځايه صحيح ده خو بيخي غلطي کوي اهل ددې نه دې دا خو د مجتهدينو باره کې داخبره ده چې موقوف حجة على المجتهد نه دي امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ يو قول کړي ده ته ورته مقابل کې د ابن عباس صاحب قول پيدا کړي او ته يې راپورته کړي الزاماً يې حجت کړي په امام صاحب چې ابن عباس صاحب داسې ويلې او ته داسې وايي دا نه منمه ولې د ابن عباس صاحب خلاف کوي په مجتهدينو باندې په موقوفاتو استدلالات لازم نه دي هغوي اخذ من کتاب الله او سنة الرسول کولې شي دغه صحابوو هم اجتهاد کړي او دغه مجتهد هم اجتهاد کړي نو په دغه وخت کې قول د يو صحابي الزامي حجت په يو مجتهد نه جوړيږي خبره في الجملة جوړه ده چې **موقوف لاحجة في الموقوفات** خو **للمجتهد** او

هر چې مقلد دي هغه خو د فقيه قول پيش کولې شي نو د صحابي قول به څنګه نه مني نو ډيره زياته غلطي کوي ځکه مجتهدين نه دي خو خبرې د مجتهدينو کوي.

نو په اعتبار د انتهاء سره په دري قسمه شو : (۱) مرفوع، (۲) موقوف، (۳) مقطوع.

دويم تقسيم د خبر واحد باعتبار الرواة، خبر واحد په اعتبار د روات سره هم په دري قسمه دي : (۱) مشهور، (۲) عزيز، (۳) غريب.

مشهور هغه حديث دي چې ثلاثه يا زائد على الثلاثة روايت وکړي په کل طبقاتو کې إلى اخر السند خو حد د تواتر ته نه وي رسيدلې . او عزيز هغه دي چې د هغې روايت وکړي اثنين من اثنين په کل طبقاتو کې إلى اخر السند .

دريم غريب : او غريب ما تفرد بروايته شخص واحد چې د هغې په روايت باندې شخص واحد تفرد کړې وي سواء في كل طبقات او که په طبقه واحده کې هر ځاى کې چې وي اول کې دې متواتر وي بيا دې مشهور وي بيا دې عزيز وي چې په يو ځاى کې تفرد راغې حديث غريب شو نو ګوري حديث غريب حديث ضعيف ته نه وايي حديث غريب خبر واحد ته وايي هغه خبر واحد چې سند کې رواة يو راغلې وي او دا څومره احاديث چې ګوري اکثر غريب دي نو که ترمذي شريف وګوري هذا حديث حسن صحيح غريب غريب څه معنى چې تفرد راغلې وي په روايت کې.

دريم تقسيم : خبر واحد بأعتبار الصفة الرواة على ستة عشر قسماً :

خبر واحد په اعتبار د صفت د راويانو سره په شپاړس قسمه دي : (۱) صحيح لذاته، (۲) صحيح لغيره، (۳) حسن لذاته، (۴) حسن لغيره، (۵) ضعيف، (٦) موضوع، (۷) متروک، (۸) شاذ (۹) محفوظ، (۱۰) منکر، (۱۱) معروف، (۱۲) معلل، (۱۳) مضطرب، (۱۴) مقلوب، (۱۵) مصحف، (۱٦) مدرج.

حديث صحيح لذاته دوي چاته وايي هغه حديث ته وايي چې روات يې عدل تام الضبط متصل السند غير معلل غير شاذ دي خمسه ته صفات د کمال الرواوي ويلې شي اسلام به وي عقل به وي عدل به وي تام الضبط وي غير معلل او غير شاذ به وي که راوي کې اسلام نه وي دا عظيمه جرحه ده، عقل به وي جنون به پرې نه وي راغلې آخر دايامو کې خلط به پرې نه وي راغلې

که کوم ثقه باندې آخرد عمر کې اختلاط راغلې وه نو ته به بیاداسند گوري چې دا روایت له ده نه قبل الاختلاط شوې که بعد الاختلاط ترې شوې که بعد الاختلاط وي ضعیف دي اگر که راوي ثقه دي ډیر کرته داسې شوي چې آخر د عمر کې په ثقه راوي اختلاط راغلې وي.

اوس عدل چا ته وايي عدل دوي دیته وايي چې راوي به صاحب د تقوی وي ذو قاً تقوا به دده معمول ذوقي وي او د دروند خوي ښتن به وي او په عامو معمولاتو شرعیه وو کې به د عدل نه کار اخلي په هغه وخت کې به چې په کوم راوي معمولي د غلطي الزم ولږیده نو د هغه روایت به نه قبلیده وايي کیدې شي دا په روایت کې هم عدل نه وي کړي.

تقوی به په کې وي متقي من الشرك به وي متقي من البدعة به وي متقي به د اهل زیغ نه وي د دوه اویا (۷۲) جماعاتو نه به نه وي دغه د دوه اویا (۷۲) جرحه بعض محدثین جرحه گڼي بعضې یې نه گڼي.

خو په کار داده چې و گڼلې شي شرح نخبه کې دې ته ابن حجر صاحب زور ورکړي دې ته چې د اهل زیغ جرحه دې جرحه شي اگر که په اسلافو کې دا جرحه نه وه ډیر راویان د بخاري شته چې شیعه گان دي دوي وايي چې دا جرحه نه ده نو کذب جرحه شوه او شیعیت جرحه نه شوه کذب جرحه ده او خارجیت قدریت جرحي نه دي بس د بعضو سلفو رایه ده خو هغوي یو علت وايي چې دغه ډلو ته ثوک تللې دا د ډیر کمال تدین نه تللي مطلب د ډیرې شیخي نه تللې اهلسنت یې پریخي دا نورو ډلو ته تللې نو دروغ نه وايي او بعضې منصفانه قول کوي یعنې څه علماء اهل زیغ باندې جرحه کوي بعضې یې تائید وي بعضې منصفانه قول کوي وايي: روایت ته یې و گوري چې مروج ددوي د مذهب دي او که نه دي که روایت مروج مذهب ددوي وه بیا یې مه قبلوي لکه د شیعه روایت راغې او دې شیعه د اهل بیت تعریف کې حدیث وویلو نو اوس دې صورت کې دا خو ددې مذهب دي نو داسې رویات د اهل تشیع بیا نه شي قبلولې یا د خوارجو په سند کې خارجي راغې متهم دي په جرحه باندې او هغه د اطاعة الامیر خلاف یو قول پیش کړ دا دې هغه رایه ده د خوارجو اهلسنت سره فرق دادې چې اطاعت د امراء اهلسنت لازم گڼي او خوارج یې لازم نه گڼي هغوي وايي که امیر د وخت بادشاه د وخت نه ظلم وشو نو اطاعت یې لازم نه دي.

او اهلسنت وايي چې امير يا بادشاه د وخت عادل وي كه ظالم وي اطاعت يې لازم ده خو كه كافر شو بيا به يې اطاعت نه كوي نو داد اهلسنت له خوارجو سره فرق دي له همدې وجې نه خوارج هر چيرته د بادشاه وخت په خلاف رااوچتيږي او اهلسنت يې مخالفت كوي نو عدل به وي نو په قيد دعدل سره خارج شو هغه راوي چې كاذب وي يا متهم بالكذب وي يا فاسق وي يا مبتدع وي يا مجهول غير معروف وي .

**تام الضبط** به وي دا ضبط يو ضبط الصدر دي بل ضبط الكتاب دي محدثين ضبط الكتاب ته ضبط نه وايي دوي چې ضبط تام يادوي ضبط الصدر ته وايي چې څنګه يې واوريدل كما حقه يې نورو ته ورسول څو څو ځل به دوي يو انسان باندې تجربه كوله هغې نه وروسته به يې بيا قبول كړو چې دې تام الضبط دي د صحيح لذاته په تعريف كې چې تام الضبط راغې نو خارج شو په دې سره واهم فحش غلط ډيرې غلطياني ترې كيږي او كثير الغفلة يا كثرت مخالفت د ثقه ګانو يا داوثق يا چې حافظه يې كمزورې وي .

**متصل السند** به وي په دې سره احتراز راغې د معلق نه چې صاحب د كتاب تعليق كوي امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ د صحابي يو قول پيش كړو او سند نه وي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حديث پيش كړي او سند نه وي دې ته تعليق وايي اګر كه امت كې تعليقات د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ د مقبولاتو نه دي له وجهې د اعتماد نه په ذات دده باندې كه سند راوانخلي هم كافي ده خو په بخاري كې .

دارنګې مرسل ترې اووت مرسل هغه وي چې په هغې كې قطعه راغلې وي د يو راوي په انتهاء د سند كې مثلاً تابعي او وايي قال رسول الله دا مرسل د تابعي دي او صحابي وايي قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا مرسل د صحابي دي يا منقطع منقطع هغه وي چې سقوط د راوي په وسط د سند كې وشي هغه مخكې چې كوم تعريف مونږ وكړو چې انتهاء تابعي ته شوې هغه مقطوع وه دا منقطع ده .

بل **معضل** دي هغه دي چې سقوط د راويينو متواليينو وشي په وسط سند كې يا ابتداء كې يا انتهاء كې ، بل **مدلس** دي دا هغه دي چې په هغې كې وهم د سقوط د راوي وي تيقن نه وي د اكر ثقه سړي كوي هر سړي يې نه كوي ، دې كې وهم د سقوط د راوي وي يقيني نه وي څوك چې مدلس وي نو بيا وګوري دا الفاظ د اتصال السند دي كه د غير اتصال

السند دي الفاظ د اتصال السند حدثني حدثنا اخبرني اخبرنا او د غير اتصال السند چې دې
عن عني دي نو عنعنه د مدلس بيا قبوله نه ده او که عنعنه نه وي په حدثني حدثنا سره وي يا
اخبرني اخبرنا سره وي بيا د مقبولاتو نه ده نو حديث صحيح لذاته دا شو چې راوي يې عادل
تام الضبط وي او متصل السند وي غير معلل غير شاذ وي.

دوهم قسم صحيح لغيره :صحيح لغيره دوي دې ته وايي چې عدالت باندې هم پوره وي
اتصال السند کې هم پوره وي غير معلل غير شاذ هم وي مسلم هم وي صرف دا يو صفت چې
تام الضبط دي دا ضبط يې ضبط تام نه وي سئ الحفظ ورته مه وايه يو سئ الحفظ دي يو
ضابط دي يو ضابط تام دي صحيح لذاته کې ضبط تام شرط دي هغې نه محدثين په اسماء
رجال کې په متقن سره تعريف کوي چې کله وو ايي هو متقن دي صاحب د ضبط تام دي نو چې
کله دا يو صفت چې ضبط تام دي دا نفي شي اوس چې دا نفي شو نو سئ الحفظ راغې که
نفس حفظ راغې که سئ الحفظ راغې حديث بيا ضعيف شو که نفس حفظ راغې حافظ دې
ضابط دي نو تام الضبط بيا نشته نو دلته به اوس ته گوري چې د دغه غير تتميم د ضبط دده
منجبر ده په کومه جبيره او که نه ده جبيره لري او که نه يې لري که دا منجبر په يوې جبيرې
باندې وه چې هغه عبارت د تعدد روايت نه دي نو دا صحيح لغيره شو راوي کې کل صفات
شته تام الضبط نه دي خو ضابط دي د دغه نقصان د تام الضبط په کې راغې خو دا نقصان يې
جبيره شوه په تعدد د سند سره رواة ډير شول نو تعدد د روايت جبيره وگرځيده په دې يو راوي
کې د تام الضبط د نقصان نو دا صحيح لغيره شو له وجهې د تعدد د رواتو نه.

بل حسن لذاته: حسن لذاته هغه دي چې دا کل رواة د صفات د کمال د راوي په کې
شته خو تا م الضبط نشته نو سيء الحفظ دي خو ضابط دي خو ضابط سره بيرته تعدد د رواتو
د دي سند نشته جبيره نه لري چې نه يې لري نو دې حديث ته دوي حسن لذاته وايي.

بل حديث حسن لغيره: حديث حسن لغيره دا دي چې راوي تا م الضبط هم نه دي ضابط
هم نه دي بلکې سيء الحفظ دي خو دومره خبره ده چې دا سيء الحفظ يو نقصان لازم شو په دې

سند کې دا منجبر شو په یو جبیري باندې چې جبیره د تعدد د سند ده نو چې تعدد د موجود شو د طرقو د دغه سيء الحفظ کوم نقصان چې راغلی وه نو دده جبیره په تعدد د سند سره وشوه نو حسن لغیره شو دا څلور واړه صحیح لذاته صحیح لغیره حسن لذاته حسن لغیره دي څلور واړو ته حدیث مقبوله وایي دینه اخوا چې اوس کوم اقسا م راځي دا احادیث مردوده دي حدیث مردود نه وي خو په اعتبار د سند سره دي کې اوله رتبه د صحیح لذاته شوه بیا د لغیره شوه بیا حسن لذاته بیا لغیره بیا دا چې حسن لذاته کې رتبې شته او که نه ؟ دلته فقهاء او محدثین اختلاف لري په محدثینو کې ابن حجر عسقلاني غوندي انسان هغه وایي دا حسن لذاته کې چې کوم حدیث بخاري او مسلم رااخستې دي دا فوقیت لري په هغه باندې چې نورو رااخستې دي دا رایه د محدثینو شوه وهابیان اهل ظواهر ټول دي طرف ته ذهاب کوي لیکن فقهاء لکه ابن همام چې محدث هم دي فقهیه هم دي هغه وایې چې هر کله راوي د بل کتاب تام الضبط شو عادل شو عاقل شو مسلم شو غیر معلل غیر شاذ شو او په هغه مصابت شو چې په کوم مصابت رجال د بخاري دي صحیح لذاته شو نو بیا دغه حدیث چې متفق علیه دي په هغه حدیث باندې چې په بل کتاب د حدیث کې موجود دي هیڅ فوقیت نه لري دا د فقهاو رایه ده .

پنځم قسم حدیث ضعیف دي : حدیث ضعیف هغه دي چې په رواتو کې صفات د کمال راوي کې ضبط تام څه چې ضبط هم نه وي بلکې سيء الحفظ وي او دغسې د سيء الحفظ د نقصان جبیره په تعدد د روایاتو سره نه وې راغلې که راغلې وي خو حسن لغیره شو دا حدیث ضعیف شو دغه حدیث ضعیفه بیا یو په مسائلو کیده په صورة د معارض کې او بل په ترغیبا تو ترهیباتو کیده په ترغیباتو ترهیباتو کې حدیث ضعیف مقبول د اتفاقاً او هر چې مسائل دي بیا به کتلي شي چې آیا مسائل دده په مقابل کې معارضه کې بل حدیث شته او که نه که وه هغې ته ترجیح ورکړه دا متروک که بیا بل حدیث مقابله کې نه وي نو د تائید لپاره یې پیش کوي نو استدلال تري کیدي شي .

بل حدیث موضوعه دي : موضوع چاته وایې چې راوي عادل څه چې کاذب دي **یکون الراوي مقطوع بالکذب** راوي یې کاذب وي .

بل متروک حدیث دي :چې راوي یې متهم بالکذب وي مقطوع به بالکذب نه وي خو متهم بالکذب وي او یا متروک دیته وایي : یکون روایته مخالفا لقواعد الشرع چې داسې روایت وکړي چې د شریعت د عامو اصولو مخالف راشي .

بل حدیث شاذ دي : حدیث شاذ مخالفت د ثقه له او ثق نه لکه په صحیح لذاته کې تام الضبط او ضابط تام الضبط او ثق ضابط ثقه روایت د ثقه مخالف دا وثق راشي نو دده روایت ته به شاذ وایې او هغه اوثق روایت ته به محفوظ ویلې شي .

بل منکر : حدیث منکر د منکر او د معروف د شاذ او د محفوظ په مینځ کې بعض محدثین د ترادف قائل دي او بعضی محدثین فرق کوي نو فرق داده چې منکر چا ته وایې چې روایة الضعیف في مقابل للقوي سيء الحفظ چې د ضابط مقابله وکړي نو دیته دوي منکر وایي او ضابط چې د اوثق مقابله وکړي د تام الضبط دې ته دوي شاذ وایي نو بیا چې ثقه د اوثق مخالفت وکړي نو دا شاذ وثق روایت ته محفوظ وایي او چې ضعیف مقابله د ضابط وکړي نو دیته دوي منکر وایي نو هغه ضابط روایت ته به معروف ویلې شي .

بل معلل حدیث : حدیث معلل دا چې په هغې کې اسباب خفیه غامضه یې قادحه وي یعلم به مهرة هذا الفن چې دد ي فن ماهرین پرې پوهیږي مثلا داسې سند بیان کې چې دده شیخ له هغه روایت وکړي په اخبرنا اخبرني سره هلته ماهرین د فن چې وګوري چې هغه کوم کال کې وفات شوې وي هغه مکې وي دا بل سړې عراقې دي ددوي د تاریخونو پته وه او دا هم ورته معلومه وي چې دي حج ته په دي کال تللي ده دي د هغه نه را نقل کوي اوس دي چې هلته مکې معظمې ته چې ورغلي وه په تاریخ کې هغه دده له ورتګ نه په تاریخ کې پینځه کاله وړاندي وفات شویده نو دا لقاء څنګه وشوه دا اوس اسباب خفیه غامضه قادحه چې ماهرین ددي فن پرې پوهیږي او یا د نورو خارجې عللو نه کذب لازم شي نو دي حدیث ته حدیث معلل وایي ، لکه نزهة المجالس کتاب قصص په کې بنه دی خو حدیث باندې یې اعتبار نشته .

بل حدیث مضطرب :او دا په دوه قسمه ده : مضطرب المتن ، مضطرب السند :

بل حدیث مقلوب : حدیث مقلوب هغې ته وایي چې مخالفت په تقدیم او تاخیر کې راشي .

بل حديث **مصحف** دوي چاته وايي چې په هغې کې مخالفت بنقطة مخالفت په يوه نقطه کې راغلي وي .

**بل حديث مدرج دي :** حديث مدرج دوي چاته وايي مدرج ديته وايي **ما ادرج فيه كلام الراوي** چې د راوي كلام په كې دننه شوې وې لكه احناف قائلينو د رفع اليدين باندې اعتراض كوي چې داسې روايت مونږ ته ښودې شي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ آخر د عمره پورې رفع اليدين كړې وي نو دوي سره نشته چې دائمې استمراري عمل چې حتى وفات د نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ پورې شوي وي دا نشته نو دوي تلاش شروع كړ او د بيهقى يو روايت يې پيش كړ بيهقي شريف كې دا حديث مذكور دي د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت سره د بخاري روايت سره روايت او متن د واړه موافق دي خو مزيد په كې دا الفاظ دي **كان هذا صلاته حتى قضى الله عزوجل** نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې مؤنځ كوه نو مانځه كې به يې رفع اليدين كوه او دغه يې مونځ وه تر وفاته پورې دا دوي ځكه استدلال كې نه شي پيش كولې چې امام بيهقي خپله وايي چې دا تكړه ادراج د راوي ده نو حديث مدرج دې ته وايي چې **ما ادرج فيه كلام الروي** چې راوي د كلام شرحه كړې وي او وروسته بيا چا د راوي دغه شرحه په متن د حديث كې دننه كړيده .

**ثلور تقسيم : خبرواحد لره بإعتبار السقوط الراوي وعدمه :** خبرواحد په اعتبار د سقوط الرواة وعدم السقوط سره په اوه (۷) قسمه دي اول حديث متصل متصل معنې متصل السند دا او س په مرفوع كې هم لږې په موقوف مقطوع كې هم لږې مثال متصل مرفوع متصل موقوف متصل مقطوع .

**دويم مسند** د مسند او **متصل** مينځ كې معمولې فرق ده فقط دغه مسند يو خاص ده چې اطلاق يې په مرفوعاتو كيږي صحابهؤ ته چې كله اتصال وشي موقوفاتو كې هغوي ته دوي مسندات نه وايي او چې كله په مرفوع كې وشې نو مسندات ورته وايي .

**بل منقطع دي ؛** چې سقوط د راوي راشې په وسط كې **بل مرسل دي** چې سقوط د راوي راشې په انتهاء د سند كې تابعي صحابي ترک كړي **قال رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و وايي په مرسلاتو كې لږ اختلاف فقهاء شته امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې مرسلات مقبول دي اتفاقا او شوافع وايي هر چې مراسيل دي د تابيعنو مقبول نه ګڼې سوا د دري اشخاصو نه ابن

الشهاب زهري حسن بصري سعيد ابن المسيب د اعتماد دذات ددوي باندي مراسل يې قبلوي ددي نه سوا د بل چا مراسل نه قبلوي .

پنځم معضل دي : معضل چاته وايي چې سقوط دراو يينو متواليينو راغلي وي دوه راويان په مينځ کې ساقط شي .

شپږم مدلس دي وهم د سقوط دراوي يي خفي سقوط راغلې وي .

پنځم تقسيم د خبرواحد باعتبار صيغ دا هم په دوه قسمه دي يو معنعن دي بل مسلسل لکه عن فلان بيا کله بأخذ اليد وي کله بالضحك وي کله دا چې رواتهم کلهم قرشيين کله رواتهم کلهم مهاجرين دا مسلسل شو ته قوت ورکوي حديث ته نو دويم ددلائلو سميعهٔو نه احاديث وه او دهغې لپاره دغه اقسام شول .

دريم ددليل سميعه اجماع ده او ددي لپاره مرکب او غير مرکب اصولو کې څه اقسام ذکر شوي دا دويم مبحث وه زموږ دنن ورځې ددرس چې مشتمل وه په بيان قسمي الدليل وبيان دفعها سره د بيان دبعضې اصطلاحاتو داهل ددي فن لکه مثلا دوي تقريب چاته وايي سوق الدليل على وجه يستلزم المطلوب چلول ددليل په داسي طريقه باندي چې مطلوب مدعا ثابته کړي مستلزم شې هغې لره يا تعليل دوي چا ته وايي تبيين علت الشیء ته ويلې شي يا علت چاته وايي ما يحتاج إليه الشيء في ماهيته ووجوده او سبب کله په معني دعلت باندي راځي او کله مفضي إلى الشيء ته ويلي شي دغه شې چې وجود ولري او دعلت په مينځ کې چې کوم شې واقع شو دا سبب ګرځي په کنده کې چې کله ذي جسم ځيز وغورزيږي نو علت دده دغورزيدو لپاره څه شی ده او سبب يې څه شې ده نو علت د غورزيدو لپاره ثقل دده او سبب ورته دغه کنده جوړه شوه ايجاد د سقوط چې دلته راغې او کوم درد حاصل شو ده ته موجود ثقل دده که ده کې هواوي سپک وي نو الوتي به وه دلته به نه غورزيده او احکام په عللو مرتب دي که په اسبابو باندي نو دا په اصولو کې تاسو چيره لي دي کوم وخت کې چې اثبات دحکم په علت ممکن وي نو په سبب به يې نه جاري کوي که داسي ځاي راغي چې نسبت د حکم صاحب العلة ته نشو کيدي ظلم لازميده بيا به صاحب د سبب مواخذه کيږي .

## المبحث الثالث : في بيان شرائط المناظرة :

اول شرط د آدابو د مناظرې نه دا ده چې احتراز عن التطويل ډير اوږد والی نه به ځان ساتې دويم شرط دا ده الاحتراز عن الاختصار ډير کوتاهي نه به هم ځان ساتي چې بيا ځوک فهم نشي کولي دريم عدم استعمال الفاظ الغربية داسې الفاظ دي نه استعمالوي چې د هغي معني بيا ځانته مناظره غواړي څلور عدم استعمال الجمل المحتملة للمعنيين داسي جملي او لغات مه وايه چې احتمال د معنيينو لري ته به خکلي معني اخذ کوي او خصم به دي غلطه معني راواخلي او د خلقو په وړاندي په ستا تبکيت وکړي.

پنځم عدم الخروج من البحث الابنية ارخاء العنان متخاصمينو مناظيرينو ته اجازت ورکړل شوي ده د بحث واړي خوشي کول په طرف دد شمن نو دلته به ته مقدمات د مقابل جانب ومني تسليم به يې کړي خو په منتهاء کې به تا څه نظر کې نيولي وي هغه شې به په ده مني ابراهيم عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ چې کوم دده قوم کې عابدين دنجومو او عابدين د قمر لمر شمس وه اودي هغوي ته ورغي فَلَمَّا رَأَى الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هَٰذَا رَبِّي د ستورو متعلق يې ويلي وه هذا ربي کله چې يې لمر شمس وليد نو وويل هذا ربي هذا اکبر نو دي کې راجح تاويل دا دی چې دا ابراهيم عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ شرکيات نه دي کړي العياذ بالله لکه د بعضې جماعاتو پاکستان کې عقيده ده جماعت اسلامي وغيره مو دودي حضرات چې څومره دي دوي د عصمت د انبياء منکر دي انبياء عَلَيۡهِمُ ٱلسَّلَامُ معصوم نه ګڼي او اجماع د تمامو علماو د مذاهبو په دې دي چې انبياء عَلَيۡهِمُ ٱلسَّلَامُ معصوم دي د کبائرو او صغائرو نه پاک دي مصون دي نو بيا څنګه شرک هغوي وکړنو راجح تاويل دادې چې دلته ابراهيم عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ ارخاء العنان کړې ده.

بل د آدابو د مناظرې نه عدم الضحك خندا به نه کوي بل د آدابو نه عدم رفع الصوت آواز به نه اوچتوي او بل د آدابو نه دا ده أن لا يتكلم بكلام السفهاء د کم عقلو خبرې به مناظره کې نه کوي بل الاتيان بالكنيات في موضع الادب چې مقابل جانب خرابه لهجه استعمال کړه ته يې مه استعمالوه انبياء عَلَيۡهِمُ ٱلسَّلَامُ ته قوم هر قسمه لهجه استعمال کړې کم عقل ليوني وغيره نو

مقابل کې ورته داسې الفاظ نه دي استعمال کړي .نو جواب کې ورته ویل شوي : **یاقومي لیس بي سفاهة** ، کم عقل نه یمه په ما څه جنون نشته نو ګوره د هغوي اعتراض دفعه کوي رب **انصرني** یا الله زما مدد وکړه چې دوي کوم نسبت کوي ماته نو هغوي جانب مقابل به هر قسم لهجه د شرک بدعت وغیره استعمالوي زمونږ الفاظ به خکلي وي .

بل د آدابو د مناظرې نه **الاحتراز عن المهیب** ، کوم څوک چې نوم لري رعب لري هغه نه ځان ساته ځکه ته به په حق مسئله ولاړیې او هغه به د اهل زیغو نه وي خو رجل ذي علم او ذي هیبت به وي د هغه د علم او شهرت نه به په تا تاثیر وي نو ته به بیا دا خپله حقه مسئله هم نه شي ثابتولې خلک به بیا وایي د اهلسنت دلائل نشته نو د رجل ذي هیبت د مناظرې نه ځان ساته مه ورسره مخامخ کیږه .

او که تاسو دا اعتراض پر ما وکړي چې ته ولې دا غټو غټو ددوي ته چیلنجونه د مناظرې ورکوي نو پر ما ددوي هیڅ هیبت نشته ځکه چیلنجونه ورکوم .

او بل ادب د مناظرې **أن لایظن الحقارة علی الخصم** ، په خپل خصم به سپک ګمان نه کوي هوښیاران وایي که دشمن دې ګیدړ وي تا بیا به د زمري ورته کوي دا به نه وایي چې دا ما ته نه شي راتلې اکثر مشران علماء داسې وي هیڅ تیارې یې نه وي کړې مقابل ورته سپک ښکاري نه داسې مه کوه که دښمن هر څنګه وي ته به ځان ښه ورته مضبوط کړې ځکه ته ددې پاک مسلک مدافع یې هسې نه چې ستا د معمولي بې پرواهي نه دا پاک او مقدس مسلک ته نقصان ونه رسیږي .

بل د آدابو او شرائطو د مناظرې نه **عدم ارادة اسکاة خصمه في زمن قلیل** خصم راګیرول په لږ وخت کې کوشش مه کوه بیا نه ګیریږي په ډیر طولاني طریقه پرې راتاویږه

بل د آدابو شرائطو نه **عدم الجلوس متکئاً** سم کینه تکیه مه کوه .

بل د آدابو نه **ان لا یکون جائعاً ولا عطشاناً** اوږې تږې مه راځه ښه برابر سیېت ورته راشه ځکه **لانهما یفیدان الغضب** چې سړې وږې شي یا تږې شي نو غصه ورځي نو تاته به د لوږې تندې نه غصه درغلې وي او د هغه دلائلو تقریب او ترتیب کې به فرق راشي .

بل د آدابو نه ان لا یکون ممتلأ کل الامتلاء لانه یوجب جمود الطبیعة ، مناظرې نه ډیر ډک تلل هم نه دي په کار ځکه دا واي طبیعت سخته وي هسې نه چې په وسط د مناظرې کې څه مشکل ورته پیدا نه شي .

بل د آدابو نه تساوي د علم بین الخصمین نو تساوي په علم خو په ټولو جزئیاتو کې راتلې نه شي ضرور به یو په بل په څه جزئیاتو کې فوقیت لري خو بس عرفا چې مساوي وي مثلاً یو جانب فارغ د علم حدیث د دورې ده بل طالب ده نو دا طالب دې هغه سره مناظره نه کوي او نه دې هغه په ده باندې ځان سپکوي یو شیخ الحدیث دي بل شیخ الحدیث نه دي نو دا دواړه هم تساوي د علم نه لري سره باقي په ټولو جزئیاتو د علم کې کله تساوي راتلې شي.

بل د آدابو نه انتظار ده لاستماع دلیل الخصم د خصم دلیل ته به انتظار کوي هغه به اوري ، بل تفکر تأمل دي في دلیل الخصم د هغه په دلیل کې به ښه سوچ کوي ، بل د آدابو نه نیت اظهار الصواب مقصد به دې د حق اظهار وي .

بل د لازم شرائطو نه داده چې ان یقدم الخصم في الدلیل خپل خصم به په دلیل کې مخکې کوي او چا چې مناظره کې خپل خصم په دلیل کې مخکې کړې ده هغه یې پر کړي موسی عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ چې کله فرعونیانو سره بحث راغې نو هغه ورته وایي : **يَـٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلْقِيَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ نَحْنُ ٱلْمُلْقِينَ** ، یا ته القاء د عصاء وکړه یا یې مونږ کوو ، نو موسی عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ورته وویل بل انتم ، تاسو مخکې القاء وکړي نو چې هغوي مخکې شول نو پړه شول **فاذا هي تلقف ما کانوا یأفکون** ،او دا دلیل د اعتماد هم وي چې هغه بل جانب مخکې کوي .

**حکایت** : امام کسائي او امام یوسف رَحِمَهُمَا ٱللَّهُ دواړه د هارون الرشید بادشاه قاضیان وه خو دا کسائي ورته ډیر ګران وه نو په ښي طرف کې به یې ناست وه امام ابویوسف رَحِمَهُ ٱللَّهُ چپ اړخ کې ناست وه یوه ورځ امام ابي یوسف رَحِمَهُ ٱللَّهُ راغې امام کسائي رَحِمَهُ ٱللَّهُ نه وه راغلې نو امام ابي یوسف رَحِمَهُ ٱللَّهُ د هغه په ځای کیناسته نو امام کسائي ورته په غصه ده چې د بادشاه ښي اړخ دې ولې نیولې ده بادشاه چې کله پاڅیده نو واي دا زما ځای دې ولې نیولي ده؟

امام ابي يوسف رَحِمَهُ اللَّهُ ورته وويل چې ته نه وې زه كيناستلم، واي نه داسې نه شي كيدلې ما سره به مناظره كوي كه مناظره كې مې پر كړي دلته به بيا نه كيني او كه زه دې پر كړم زه به نه كينم واي څه كې مناظره كوي راسره واي ته د فقه امام يې زه د نحوې امام يم ته به ما باندې د فقه اعتراض كوي خو زه به دليل په نحوه در كوم او زه به په تا باندې د نحوې اعتراض كوم ته به جواب راته په فقه راكوي وايي صحيح ده واي هاو امام ابي يوسف رَحِمَهُ اللَّهُ يې مخكې كړ په دليل كې واي وايه اعتراض دې كوه : واي چې مانځه كې ترك الواجب راشي څه لازميږي وايي سجده سهوه وايي دا سجده سهوه چې كوي بيا په كې ترك الواجب راشي بيا څه لازميږي واي بله سجده سهوه نشته مونځ به له سره كوي وايي دا فقه جزيه مسلمه ده خو دليل وايه د نحوې نه واي دليل داده چې المصغر لا يصغر ثانياً كوم شي كې چې تصغير وشي د هغې تصغير په دوهم ځل بيا نه كيږي .

امام ابي يوسف رَحِمَهُ اللَّهُ مسلمه كړه واي صحيح ده ، واي ته اعتراض كوه وايي زما اعتراض داده چې ته قاضي د وخت يې د يو سړي جامي وركې دي په دوه نفرو دعوه ده دواړه يې راوستي دي قضاء ته او دا دواړه اقرار كوي خو دا يو وايي أنا سارقٌ ثوب فلان سارق بالاضافة وايي او دا دويم وايي انا سارقٌ ثوب فلان منون يې وايي با ته په ثوب كې عمل وركوي لاس به د چا كټ كيږي امام ابي يوسف صاحب دلته سوچ ونه كوه وايي د دواړو كټ كيږي ځكه دواړه مقر دي .

امام كسائي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته وايي خطاء شوې دواړه مقر نه دي دا يو وايي انا سارق ثوب فلان سارق اسم فاعل ده شرط د عمل د اسم فاعل لپاره اعتمادات سته دي دلته اعتماد په مبتداء شته دي او بل به دا په زمانه د حال يا استقبال مستعمل وي چې مشابهت كې زيادت راشي د فعل سره چې مضارع ده تقوی د عمل لپاره كفايت كوي او كوم ځای كې چې اسم فاعل په معنی د ماضي باندې وي يا حال استمرار سره وي عمل به نه شي كولې نو شرط د عمل د اسم فاعل لپاره اعتمادات سته دي او كونها حالياً واستقباليا نو انا سارق ثوب فلان دلته دې عمل وركړې دي او عمل هله كولې شي چې يا حال وي يا استقبال وي نه په معنی د ماضي سره نو ددې يو معنی دا شوه چې زه اوس ددې سړي جامي پټوم لامې پټې كړي نه دي

او یا یې صبا ته پتهوم نو لاس یې ځله قطعه کوي هغه خو غلا نه ده کړي او دا بل وایي انا سارق الثوب فلان په اضافت سره یې وایي عمل نه ورکوي اضافت دې زه د فلاني د جامو غل یم ده اقرار کړي دده نه لاس کټ کړه .

امام ابي یوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ یې پر کړ امام کسائي رَحِمَهُ اللّٰهُ مناظره وکتله ځکه یې وکتله چې تقدیم د امام ابي یوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ راغلې وه خصم به مخکې کوي او څوک چې مخکې شو هغه پر کیږي .

بل شرط او ادب د مناظرې داده چې بدء به په دلیل هغه کوي چې ذي کلام وي او دلیل قطعي غیر ذي کلام به مؤخر راوړي اول به هغه روایات راوړي چې چون چرا په کې کیدې شي دده علم به معلوموي دې به چون چرا کوي او ستا په نزد چې دلیل قطعي دي چې دې په کې لا جواب پاتې کیږي او تاته بنه معلوم دي هغه به وروسته ذکر کوي ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ دنمرود سره په جګړه کې ربي الذي یحي ویمیت دلیل پیش کړ هغه څه جواب کوي انا احي وامیت دلیل خو یې تام نه وه جاهل وه خو بیا یې هم چون چرا وکړه ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ددې چون چرا مقابله په ځای پریښوده .

دلیل یې هم دلته پریښود چې هغه اماتت او دا اماتت کې خو فرق ده چون چرا یې ونه کړه وایي نه رب مې هغه یأت بالشمس من المشرق ته هم ځان ته رب وایي نو یو ځل خو یې د مغرب نه راوخیژوه فبهت الذي کفر نو هغه لا جواب پاتې شو .

بل شرط داده چې یکون الدلیل متفق بین الخصم هغه شي به دلیل وي چې متفق وي که د اهل حدیث سره دې مناظره راځي فقه مني نه نو پیش کوي یې ځله څه مني درسره قرآن کریم پیش کړه حدیث پیش کړه هغوي سره مناظره په دغه ځیزونو کوه .

بل شرط داده چې ان یکون الثالث شخصاً عادلاً ، ثالث به عادل وي که عادل نه وي نو حق به ناحق شي او ناحق به حق شي .

**حکایت** : امام کسائي رَحِمَهُ اللّٰهُ د سیبویه سره هم یوه مناظره کړې وه او هغه هم دواړه د هارون الرشید بادشاه په دربار کې ناست وه دې کې یو وزیر راغې دا وزیر دې سري غټې

مچې چیچلي وه ډمبر چې ورته وایي نو چې راغې دا مجلس کې وایي **كنت اظن ان العقرب اشد لدغا من الزنبور فاذا هو هي** ، ما به ګمان کوه چې لړم د زمبور نه په نیش کې تیز دي **فاذا هو هي** ناڅاپه هغه تیز نیش والا وخته دا زنبور کسائي وزیر ته وویل عبارت دې غلط وویل **فاذا هو هي** مه وایه **فاذ وجدت اياه** ووایه ما مونده کړ دا زمبور چې اشد وه لدغتا لړم نه ، سیبویه امام کسائي ته وایي ته غلط شوې **فاذا هو هي** صحیح دي اختلاف جوړ شو خو دا خلاف بنا وه په مذهبینو ددوي باندې .

تاسې به نحوه کې **اذا** مفاجاتي کتلې وي **اذا** مفاجاتي نه بعد په نزد د سیبوه او جمهورو جمله اسمیه په کار ده کوم اسم چې په میزان د شریطې د تفسیر کې وي نو په هغې کې تاسو ویلې چې کوم ځای واجب الرفع ده کوم ځای مختار الرفع ده امور د مختار رفع کې وقوع ددغه اسم مزان وروسته د **اذا** مفاجاتي نه دي ځکه د جمهورو مذهب دادی چې دلته جمله اسمیه وي نو مرفوع ووایه چې ورته مبتداء راوباسو او یا ورته خبر راوباسي نو **اذا** مفاجاتي نه بعد امام سیبویه او جمهور وایي جمله اسمیه په کار ده او کسائي وایي فعلیه په کار ده دا یو اختلاف د مذاهبو ددوي ده نو وایي چې **فاذا هو هي** مه وایه دا خو تا اسمیه راوړه **فاذا وجدت اياه** ووایه جمله فعلیه راوړه سیبویه ورته وایي نه دواړه په لانجه شول .

هارون الرشید بادشاه ورته وویل تاسو به لانجه نه کوي زه باندې ته څوک لیږم سپین ږیري عربان قح راغواړم تاسو به چون چرا نه کوي دواړه به هغوي ته عبارت واوروي چې د هر چا د عبارت تصدیق یې وکړو هغه به صحیح وي سپین ږیري عربان چې کله راغلل نو دربانچي ته وایي څه مسئله ده هغه ورته خبره بیان کړه **وجدت اياه** صحیح ده که **اذا هو هي** صحیح ده ، عربانو دربانچي ته وویل چې دا راته ووایه چې بادشاه باندې امام کسائي ګران ده که امام سیبویه هغه ورته وویل کسائي ورته ګران دي که د سیبویه باره کې مو فیصله وکړه یوه روپې هم نه درکوي اضافه به مو نور هم دباؤ کړي که د کسائي باره کې مو فیصله وکړه کیدې شي روپې درکړي .

نو عربانو خپل مینځ کې سره وویل چې خبره خو د امام سیبویه رَحِمَهُ اللهُ صحیح ده زمونږ

عربو کې خو فاذا هو هي ويل کيږي خو اوس دلته خبره د روپو ده وايي راځي هلته به کسائي ته ترجيح ورکړو چې کله دواړو عبارتونه بيان کړل کنت اظن ان العقرب اشد لدغا من الزنبور فاذا هو هي ، بل کنت اظن ان العقرب اشد لدغا من الزنبور فاذا وجدت اياه ، نو هغوي وويل : چې زمونږ عربان فاذا وجدت اياه وايي ، پس مناظره کسائي وګټله سيبويه پر شو سيبويه چې بهر راغې دربانچي ترې پوښتنه وکړه واي څه فيصله وشوه هغه ورته وويل چې د کسائي قول يې قبول کړ واي چې دا صحيح ده دربانچي ورته وويل چې دوي خو دلته وويل چې عرب قح اذا هو هي وايي دا خو يې د روپو لپاره اذا وجدت اياه ويلي دي .

بس امام سيبويه خفه شو دې ځای نه لاړ چې لاړ د بصرې او د عراق په مينځ کې يوه دشته وه دير الجماجم يې ورته ويل هلته لاړ او زمونږ د پاکستان په اصطلاح بهوک هړتال يې وکړو او وي ويل چې تر هغه وخته به نه روټي خورم نه به اوبه څکم او نه به بل چيرته ځم تر څو هغه عرب راغلې نه وي او د کسائي په وړاندې يې دا خبره کړې نه وي چې ته خطاء شوې يې د هارون الرشيد بادشاه هغه وزير ورغې ډيرې يې امام کسائي ته وويل چې راځه بس کړه هغه ورته وويل چې داسې نه شي کيدې هارون الرشيد بادشاه به خپله راځي عربان قح به راولي او امام کسائي به خپله غلطي مني وزير ورته وويل مري دلته له ګرمي ، له ولږې تندې نه دي دشته کې نو يو روايت کې راځي چې امام سيبويه دغلته له ولږې مړ شوي تر مرګه پورې واي روټي ونه خوړه وايي حق خبره زما وه او فيصله د کسائي په حق کې وشوه . نو يو شرط داده چې ثالث به عادل وي .

دا چند شرائط د مناظرې وه .

## المبحث الرابع : في اثبات علم المناظرة وکونها من أهم العلوم :

د نن درس في اثبات مناظره چې کله نيت د اظهار حق وي بيا دا علم جائز ده د ضرورت پر بناء ځکه دا نور خلک زمونږ دې احنافو نه ، نه قلاريږي نو د ضرورت پر بناء مونږ هم دا کورس جوړ کړې ليکن حقيقت داده چې د اهل زيغ اهل هواء سره مجالست مشافهت مکالمه ونشي بالکل مباحثه ونشي بهترينه طريقه داده چې د ځان نجات غواړي او د قوم نجات

غواړي ترغيب دې ورکړې شي چې دوي سره مه نږدې کيږئ ، ګوره زمونږ دا اسلاف د شيعه ګانو سره مناظرې نه کوي دا ځکه هر درس کې دا وايي چې شيعه ګان ګمراه دي کافر دي ددې نه ځان وساتي خو بحث نه کوي ورسره ځکه دغه طريقه چې د اهل هواء اهل زيغ نه خلک بچ کړې شي دغه طريقه د نجات ده هم د ځان هم د قوم او که ته اختيار د مناظرې ورکړي نو **ملا آن باشد که چپ نباشد** ملا کله چپ کيږي ملا خو داسې نه وايي چې زما توبه دا خبره ما نه غلطه شوې حتماً يو څه به وايي بيا نو که ښه عالم او ذکي طالب دا مناظره واوريده چې ښه دليل چا سره دي د چا دليل قوي ده نو علماء او ذکي طالبان پرې پوهيږي خو که عام خلک دا بيا اوري نو هغوي وايي چې دا خو دواړه قرآن وايي نو اوس مونږ د چا ومنو هغه خوران په دې څه پوهيږي چې د چا دليل تام ده د چا نه ده د دليل دعوی مينځ کې د خصوص عموم مينځ کې موافقت شته نشته نو ښه خبره داده چې خپله هم ددوي د مشافهت مکالمو نه ځان وساتي او قوم هم ددوي د مجالست نه بچ کړي ، نو ښه طريقه داده چې دا علم مناظره زده کړي خو ډير شغل په کې مه کوي ځکه دا بحث مباحثې مفيدې نه دي .

**يو څو روايات :** د حافظ ابن بطه حنبلي يو کتاب ليکلي په نوم د الابانة باندې په جلد اول صفحه ۳۷۷ نه بعد ډيرو صفحاتو کې د اهل زيغ اهل هوی سره د مناظراتو مکالماتو په ترديد کې ابواب لړولي دي چې دوي سره مناظره کول هم جائز نه دي په دې کې باقاعده بابونه لړولي په هغې کې بيا احاديث ذکر کوي ابو قلابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي : **لاتجالسوا اهل الاهواء** ، کوم ځای چې په احاديث کې فقه کې **اهل الزيغ** راشي **اهل البدعة** راشي **اهل الاهواء** راشي نو ددې نه مراد دا دوه اويا (۷۲) ډلې وي که شرحه د حديثو وګوري قدريه مرجئه خوارج روافض مشبه د اجماعات ياديږي په کې ابو قلابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: **لا تجالسوا اهل الاهواء** دغه دوه اويا (۷۲) ډلو سره مجالست مه کوي **ولاتجادلوهم** ددوي سره جګړې د دليل مه کوي مناظره هم ورسره مه کوي **فاني لا آمن ان يغمسوکم في ضلالتهم** ،زه په تاسو امان نه لرم چې دوي به تاسو غوپه کړي په خپله ګمراهي کې .

خپلو شاګردانو ته وايي چې دا ګمان مې درباندي نشته چې بحث کې به تاسو دوي سم

کې بلکي يريږم چې تاسي به پخپله ګمراهي کې ډوب کړي او **يلبسوا عليکم ما تعرفون** که ګمراهۍ کې مو غوپه نکړي نو هغه خپله عقيده کې خو به يو څه خلل درته پيدا کړي عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مرفوع حديث پيش کوي رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائي **لا تجالسوا اهل القدر ولا تفاتحوهم** قدريه فرقې سره ناسته مه کوي **ولا تفاتحوهم** اي **بالکلام** د وي سره د خبرو خوله مه خلاصه وي ګوري د قدريه فرقې له بحث نه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ منعه کړي يو عمر بن قيس رح فرمايي **لاتجالس صاحب زيغ فيزغ قلبك** ، د چا زړه چې کوږ شوې وي اهل هواء وي ناسته مه کوه ګنې ستا زړه به ورسره کوږ شي .

ابو قلابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت کوي د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث دي موقوف **لاتجالس اهل الهواء فان مجالستهم ممرضة للقلوب** د اهل زيغ سره مه کينه د دوي سره ناسته زړه ته مرض دننه کوي زړه خرابوي ، **العلم دين فانظروا عمن تأخذون دينكم** ، علم دين دي سوچ کوي دين چا نه زده کوي .

ابو عبدالله معلى فرمايي :

**لاتجالسوا اهل الهواء فانهم يمرضون القلوب .**

دارنګې حسن بصري رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي :

**لا تجالسوا اهل الهواء فانهم يمرضون القلوب** ، مه کيني اهل بدعت سره ځکه دا زړه بيماروي .

ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي :

**لا تجالسوا أهل الاهواء فاني أخاف أن ترتد قلوبكم** ، يريږم چې زړونه به مو مرتد شي .

ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اللَّهُ بل ځاى کې فرمايي :

**لاتجالسوا أهل الهواء فان مجالستهم تذهب بنور الإيمان من القلوب .**

د اهل زيغ سره ناسته نور د ايمان ختموي له زړه نه **انشراح الصدر** نور قلبي فراست دا هر څه به درنه لاړ شي ، **وتسلب محاسن الوجوه** او د مخ ښائست ختموي **و تورث البغضة في قلوب**

**المؤمنين** د مؤمنانو په زړونو کې بغض پيدا کوي دشمني تفرقه اچوي.

ابو قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي ترجمه کوي **يا أهل الكتاب لا تغلو في دينكم** دا دې ترجمه کوي اي **لا تبتدعوا ولا تجالسوا المبتدع** بدعات کوي مه او د مبتدع سره کيني مه مبتدع په اصطلاح د محدثينو او فقهاو دوه اويا (۷۲) ډلې دي.

أبي جعفر محمد بن علي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي:

**لاتجالسوا اصحاب الخصوماة فانهم الذين يخضون في ايات الله.**

مه کيني د جګړه مارو خلکو سره دا هغه خلک دي **يخضون في ايات الله** چې خوض في ايات الله کوي رب کريم فرمايي چې کوم خلک خوض في ايات الله کوي مه ورسره کيني که ورسره کيناستي **انكم اذا مثلهم.**

دلته د بعضې مفسرينو راي داده چې دا په حق د خوارجو کې نازل شوې.

ابي قلابه رَحِمَهُ اللَّهُ نصيحت کوي خپل شاګرد ايوب رَحِمَهُ اللَّهُ ته: **احفظ مني اربعة**، څلور خبرې ما نه يادې کړه او عملي يې کړه **لا تقل في القرآن برأيك**، په قرآن کريم کې د ځان نه څه مه وايه، **اياك والقدر**، تقدير کې خبرې مه کوه، **اذا ذكر اصحاب محمد فامسك** صحابه کرام چې ياد شول ژبه بنده کړه مخکې مه ځه معاويه صاحب دا کړي دي جنګ کې دا وشو بس غلې شه **ولا تمكن اصحاب الاهواء من سمعك فينبذ فيه ما شاء** دا اهل اهواء چې دوه اويا (۷۲) ډلې دي وخت مه ورکوه **من سمعك** له درس ستا نه درس کې مه پرېږده چې کله د حديث درس ورکوې نو خپل درس کې يې مه پرېږده **فينبذ فيه ما شاء** ګنې وا به چوي ستا په درس کې څه چې يې خوښه وي.

**الابانة** د **ابن بطة حنبلي** کې د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ يوه واقعه نقل کوي: امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ مدينه منوره کې درس حديث ته ناست وه **جاء رجل من اهل اعتزال** يو سړې راغې معتزلې وو ودريده وايي اجازه ده چې درس کې کينم امام مالک صاحب وپيژنده وايي نه، اجازت نشته هغه ورته وويل سبق درنه وايم، امام مالک صاحب ورته وويل اجازت نشته

تا ته زه سبق نه وايم خوا کې يې يو محدث ناست وه امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ ته يې وويل پرېږده که

ښه شي درس سره ، امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ ورته وويل نه : **انهم ممرضون القلوب** ، دا زړه ته مرض

داخلوي دا چې مې درس کې پرېښود زما زړه ورسره خرابيږي .

ګوره څو مره لوي محدث ده په درس کې د يو معتزلي په ناسته يريږي چې زه ورسره

خراب نه شم نو په دې کې هغه بې ادبه وويل چې زه مناظرې ته راغلې يم درس ته نه يم راغلې ،

امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ ورته وايي ته خپله عقيده کې شکي يې ځان غوندې شکې پيدا کړه هغه

سره مناظره وکړه او زه الحمد لله خپله عقيده کې په يقين باندې يمه نو زما مناظرې ته څه

ضرورت دي زما په دې يقين ده چې زه په کوم مسلک يم دا حق دي او ته په باطله يې ، نو امام

مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ پوه شو چې دا جاهل ده له ده سره مناظره بې ځايه ده نو وي شړه هغه محدث

ورته وويل پرېښې به دې وه درس کې به ناست وه امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ ورته وايي که دې په

درس کې ناست واې قسم په الله ! ما به مدينه کې درس حديث پرېښې واي ، درس حديث به

مې بند کړې واي .

**باقي دا علم** !!! علم مناظره چې ده دا جائز علم دي ناروا ويل ورته نه دي په کار خو

شرط په کې اظهارِ حق دي چونکې نن ضبا مجادلې مقابلې دي بعضې محققين مشائخ اوس

هم شته دي چې هغه وايي چې بالکل دې دا ونه کړې شي خاموش دې شي او د هغوي خبره هم

تريو ځايه په حقه ده خو چونکې اوس دوي چيلنجونه ورکوي زمونږ عوامو ته که مونږ دا

چيلنج قبول نه کړو خو باقاعده زمونږ عوام وايي دوي سره دلائل نشته خرابيږي نو د

مجبوري په لحاظ به دا مونږ قبلوو باقي څه خير په کې نشته دي څو مره مناظره شوې دي په

منتهاء کې ثمره د خير نه راځي او لا ترې نه شر جوړيږي خو چونکې دوي شرپسند دي دوي

چيلنجونه ورکوي او دا خصم تفرقه دوي جوړ کړي نو په دې بناء مونږ عوامو خواصو ته دا

ښايو چې زمونږ مذهب زمونږ عقيده دا حق مذهب دي دا حقه عقيده ده په دې مونږ سره دلائل

شته د قرآن کريم احاديثو فقه نه هر قسم دلائل مونږ لرو او شته نو خپله نفس مناظره جائزه ده .

تفسير قرطبي دويم جلد صفحه ۱۸۶ باندې د **قل هاتوا برهانکم ان کنتم صادقين** په

ذيل کې اوږد تفصيل کوي او د مناظرې حلت ثابتوي چې دا امرِ جائز دي راتله وکوي په

دليل باندې نو طلب د دليل د سائل كار دي او سائل جوړ دې نه شي بدون د مدعي نه نو چې مدعي او سائل پيدا شول هم دغه خصمين دي دا مناظره ده.

دارنګې تفسير قرطبي جلد ۷ صفحه ۷۵ باندې ليکي : **ومن الابل اثنين ومن البقر الاثنين**، ددې نه وروسته دا ذکر کوي : **فدلت الايات على اثبات المناظرة في العلم**، آيات دليل په دې ده چې مناظره په علم کې جائزه ده، **لان الله تعالى امره النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان يناظرهم**، ځکه رب کريم نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ مامور کړ په دې باندې چې مناظره وکړه له دوي سره، **وفيها اثبات القياس** او په دې کې د قياس د اثبات دليل هم دي.

دارنګې تمهيد د ابن عبد البر جلد ۸ صفحه ۳۶۸ باندې ليکلي څو روايات ذکر کوي او د هغې نه وروسته ليکي : **فيه دليل على اثبات المناظرة**.

دارنګې تفسير ابن کثير جلد ۱ صفحه ۳۲۸ کې ليکي : **قل تعالوا ندع ابناءنا وابنائكم** ددې په تفسير کې ليکلي : **هذا كما دعا رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفد نجران من النصارى بعد قيام الحجة عليهم في المناظرة وعتوهم وعنادهم إلى المباهلة**، وروسته له دې نه چې نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ وفد نجران قيام د دلائلو په هغوي په مناظره کې وکړ هم دا نجران سره نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ مناظره وکړه.

عيسى عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ باره کې چې د الله رسول دي عبد الله دې روح الله دي ثالث ثلاثة يا هو الله نه دي نو چې کله هغوي عناد وکړ بيا چې راخکل مباهلې ته.

دارنګې فتح الباري جلد ۱ ص ۲۶۲ باندې ليکلي ددې حديث لاندې : **ان النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لم يكن يضجر من المراجعة في العلم**، نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ د مراجعې علمي نه، نه تنګيده چا به چې استفتاء کوله مراجعه علمي نو دې به نه تنګيده.

دې ځای لاندې ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ ليکلي دي :

**فيه جواز المناظرة ومقابلة السنة بالكتاب.**

دارنګې کشف الظنون جلد ۱ صفحه ۱۶ کې ذکر کوي : **ومن فروع اسول الفقه علم**

**النظر علم المناظرة .**

دارنګې درمختار جلد ٦ ص ٤٢١ کې ليکلي دي : **المناظرة في العلم لنصرة الحق عبادة ،** مناظره علمي د حق د مدد لپاره عبادت دي **ولاحد ثلاثة حرام** که نصرت د حق نه وي اظهار حق نه وي بيا حرامه ده **لقهر مسلم** يو عام مسلم مغلوبوي هسې علم ښايي يا دوينا جاه او جلال حاصلوي بيا حرامه ده .

دارنګې شرح الزرقاني جلد ٣ ص ٧٥ کې ليکلي دي : **فسؤال احدهما الآخر على وجه المذاكرة والمناظرة جائز ،** يو چې بل نه سوال کوي د مذاکرې مناظرې په نيت باندې دا جائز دي ، **اذا التزم شروط المناظرة من الانصاف ،** چې کله دواړو ځان باندې شرائط د مناظرې لازم ګڼلې وي چې هغه انصاف ده او قصد اظهار حق ده **وتعاونوا إلى الوصول إلى الحق .**

دارنګې شرح الزرقاني جلد ٣ ص ٢٨٦ کې ذکر کوي : **ان المناظرة وطلب الدليل وموقع الحجة كان قديما من زمن الصحابة ولا ينكره الا جاهل .**

مناظره علمي استدلالات دا له زمانې د صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُم نه شروع دي جائز دي او انکار د مناظرې نه ، نه کوي مګر جاهل .

مستصفی د امام غزالي رَحِمَهُ اللّٰهُ جلد ١ صفحه ٣٥٨ کې ذکر کوي مفهوم ترې دا جوړيږي **المناظرة قد تكون الواجب ،** مناظره کله کله واجبه وي چې اهل زيغ چيلنج درکوي لازم ده چې ته به يې قبلوي ، وقد تکون مندوبة کله کله مندوبه وي .

دا خبره چې څوک وايي دغه شان کورس چې تاسو د مناظرې جوړ کړي دا په اسلافو کې هم وه او که بدعت ده ؟ مونږ ورته جواب ورکوو چې هاؤ دا په اسلافو کې موجود وه داسې کورس په اسلافو کې هم شوې ده :

ابي محمد عبد الله بن علي بن سعيد القيصراني يو محدث تير شوې دي هغه باره کې معجم البلدان جلد ۴ ص ٣٥٧ کې ذکر کړي دي :

**كان فقيها فاضلا حسن الكلام في المسائل ثم ارتحل إلى دمشق وعمل بها حلقة المناظرة.**

په دمشق کې دمناظرې یوه حلقه د درس جوړه کړه په جامعه د دمشق کې : **ثم انتقل إلى حلب فبنى له ابن الجمحي مدرسةً** ، هلته بیا ورته د وخت والي یا ګورنر ورته مدرسه جوړه کړه نو ددغه صاحب په رابطه محدثینو لیکلي چې ده به خپله مدرسه کې یوه حلقه د مناظرې لرله او په هغه کې به یې د مناظرې درس کوه داد بعضې فقهاو هغه عبارات وو چې خپله مناظره په نیت **اظهار الصواب لا لالزام الخصم** دا جائز ده .

درس اول چې په بیان د درس مناظره کې وو ختم شو او دا مشتمله وه په اربعه مباحثو باندې.

